## ویاړنه د امیر کروړ جهان پهلوان

زه یم زمری، پردې نړۍ لهما اتل(١)نشته
په **هند** و **سند** وپر **تخار** او پر **کابل** نشته
بل په **زابل** نشته له ما اتل نشته

***

غشی د من(٢) مې ځي ، برېښنا پر مېرځمنو(٣) باندې
په ژوبله یونم یرغالم (٤) پر تښتېدونو (٥) باندې
په ما تېدونو(٦) باندې له ما اتل نشته

***

زما د بریو(٧) پرخول تاوېږي(٨) هسك په نمنځ او په ویاړ(٩)
د آس له سوو مې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ [ ١٦ ]
کړم ایوادونه اوجاړ(١٠) له ما اتل نشته

***

زما د تورې تر شپول لاندې دي **هرات** و **جروم**(١١)
**غرج**(١٢)و**بامیان** و**تخار** بولي(١٣)نوم زما په اودوم(١٤)
زه پېژندو یم(١٥) په**روم** له ما اتل نشته

---

(١) اتل: ظاهراً بفتحتین، بمعنی نابغه و پهلوان و بر گزیده است ، پښتونها اتل‌را بصورت اسم خاص و علم هم استعمال میکردند ، مثلا اتل خان نام شخصی است معاصر اجداد احمد شاه بابا ازقوم سدوزی ، پوپلزی .

(٢) من : این کلمه تحقیق و شرحی درخور دارد ، ر : ٢١ .

(٣) مېرځمن : در پښتوی قدیم و متوسط بمعنی دشمن بوده ، و ریشهٔ آن مېرځی ، مېرځ هم‌استعمال میشد ، درتذکرهٔ سلیمان ماکوهم این‌کلمه‌دیده می‌شود، و اشعارمتوسطین هم زندگانی این‌کلمه را نشان میدهد حاشیهٔ٣ ص١١ را بخوانید و (ر:٤) .

(٤) یرغالم : فعل‌حال متکلم‌است‌ازمصدر یرغالل که اکنون‌این‌مصدر باتمام مشتقات‌خود مرده ، وفقط دراشعارمتوسطین مادهٔ یرغل بمعنی هجوم وتاخت‌دیده می‌شود ، وازین شعر برمی‌آید ، که این کلمه در قدیم مصدر و مشتقاتی داشته اکنون هم میتوان آن را واپس زنده کرد . خوشحال خان گوید :

ماخوتوبه وکړه که زړه‌هم راسره مل‌شي    عشق‌دئ‌چه‌همېش‌ئې‌په توبه باندې یرغل‌شي

## فخریهٔ جهان پهلوان امیر کروړ

من شیرم ، برروی زمین پهلوان‌تری از من نیست

در **هند** و **سند** و در **تخار** و **کابل** نیست

در **زابل** هم نیست ✡ پهلوانتری از من نیست

***

تیرهای اراده وعزم من مانند برق بردشمنان میبارد

درجنگ وپیکار میروم ومی‌تازم ، برگریزندگان :

وبرشکست خوردگان ✡ پهلوان‌تری‌ازمن‌نیست

***

فلك با افتخار زیاد ، برخود ظفر های من می‌چرخد

سم‌های‌اسپ‌من‌زمین‌رامیلرزاندو کوه‌هارازیروزبرمیسازم

مملکت‌ها را ویران سازم ✡ پهلوانتری از من نیست

***

هالهٔ شمشیر من **هرات** و **جروم** را فرا گرفته

**غرج** و**بامیان** و**تخار**نام مرا برای‌درمان دردها ذکرمیکند

دررو**م** روشناس ومعروفم ✡ پهلوانتری از من نیست

---

(٥) تبنتېدونی : یعنی گریزنده ، اسم فاعل است از مصدر تبنتېدل یعنی گریختن .

(٦) ماتېدونی: بمعنی‌شکست‌خورنده‌است ازمصدرماتېدل یعنی‌شکستن، وماتریشهٔ آنست .

(٧) بری به فتحتین بمعنی ظفراست . بسبب دخول عامل دال شکل بریورا یافته‌است .

(٨) تاوېږي: فعل‌حال‌است‌ازمصدرتاوېدل که یك‌معنی آن گردش کردن‌ودورخوردن‌است.

(٩) ویاړ: چنانچه گذشت بمعنی افتخاراست . (١٠) اوجاړ: یعنی خراب وبرهم.

(١١) جروم: این‌کلمه‌شرحی‌دارد،(ر:٢٢) . (١٢) رجوع کنیدبه‌ملحقات کتاب، ر:١٩.

(١٣) بولي : فعل‌حال‌است ازمصدر بولل یعنی یاد کردن . بولي یعنی‌یاد وذکرمیکند .

(١٤) اودوم : به ضمهٔ اول وواو معروف وضمهٔ سوم وواومعروف اکنون بمعنی‌چاره و علاجی است باصول عنعنهٔ مروجه ومجربه ، ودربین عوام رواج است‌که برخی از اسماء را برای علاج زهروگزیدن‌حشرات میخوانند وآنرا اودوم همان زهرگویند ، درینجاهم شاید مقصد همین باشد ،که نام وی را مردم بطور اودوم میگرفتند .

(١٥) ... یعنی روشناس و معروف و صاحب نام و نشان است .

پرمرو زما غشی لوني(۱) ډاری دښن(۲) راځخه
دهریوا لرود پرځنډو ځم تښتی پلن(۳) راځخه
رپي(٤) زړن(٥) راځخه له ما اتل نسته

☆☆☆

د زرنج سوبه مې دتوری په مخسور (٦) وکړه
په باداری(۷) مې لوړاوی(۸) د کول(۹) د سور وکړه
ستر مې تربور وکړه(۱۰) له ما اتل نسته

☆☆☆

خپلو وګړو لره لور (۱۱) پېرزوینه کوم
دوی په ډاډینه(۱۲) ښه بامم(۱۳) ښه ئې روزنه کوم
تل ئې ودنه (١٤) کوم له ما اتل نسته

☆☆☆

پر لویو غرو مې وینا درومي نه په ځنډو په تال
نړۍ زما ده نوم مې بولي پر دریځ(۱۵) ستایوال(۱٦)
په ورځو، شپو، میاشتو، کال له ما اتل نسته

☆☆☆

(۱) لونی : یعنی تیرهای من برمرو می‌بارد ، ولی این‌معنی تقریبی وموافقست بمحاورهٔ پارسی · تحقیق مزید این کلمه در ملحقات آخر کتاب دیده شود ( ر : ۲۰ ) ·

(۲) دښن : بمعنی‌دشمن وعدو ، کلمهٔ قدیمی‌است که تادورهٔ متوسطین حیات داشت ، وجمع آن‌دښنه است ، درتذکرهٔ سلیمان ماکو که بعداز (٦١٢هـ) نوشته شده درعبارات منثورمؤلف این‌کلمه بنظر می‌آید ، و هکذا دراشعار ملکیار غرشین که بعد از (٥٠٠ هـ) حیات داشت ، کلمهٔ دښن ، دیده می‌شود (رجوع کنید به پښتانه شعراء ، ج ۱ ص ٥٥-٥٦) (ر: ۲) ·

(۳) پلن : به فتحهٔ اول وزور کی‌دوم منسوبست‌به پل یعنی‌قدم که ظاهراً باید بمعنی‌پیاده باشد ، واکنون پلی گویند ، وکلمهٔ پلن ازاستعمال افتاده ·

(٤) رپی : فعلی است از مصدر قدیم رپل که بمعنی ارزیدن است واکنون رپېدل بعوض آن مستعمل وفعل حال رپېږي است · رپل و رپي از استعمال افتاده ·

(٥) زړن : به فتحتین ، این کلمه اکنون ازبین رفته ، و توجیهاً میتوان گفت : که نون نسبت در آخر کلمهٔ زړه (دل) ملحق وهای آخر افتاده ، وغالباً باید بمعنی دلیر ، و دلاور ،

تیرهای من بر مرو می‌بارد ، ودشمن ازمن میترسد
برسواحل‌هریوالرودمیروم،وپیاده‌هاازپیشم‌میگریزند
دلاوران از من میلرزند		پهلوانتری از من نیست

☆☆☆

زرنج را به سرخروئی شمشیر فتح کردم
دودمان سور را به سرداری و آقائی اعتلاء دادم
عم‌زادگان خودرا بلند بردم		پهلوانتری از من نیست

☆☆☆

بر مردم خود مهربانی و روا داری دارم
با اطمینان آنها را تربیه و پرورش میکنم
همواره نشو و نما میدهم		پهلوانتری از من نیست

☆☆☆

حکم من بدون تعطیل بر کوههای شامخ جاری است
دنیا ازان من‌است ، ستایندگان برمنابرنام مرا می‌ستایند
درروزها ، شبها ، ماه‌ها ، سالها		پهلوانتری از من نیست

☆☆☆

(٦) مخسور : این کلمه مرکب است از مخ ( روی ) و سور ( سرخ ) که مجموعاً باید بمعنی سرخروئی باشد ؛ و اکنون از میان رفته ۰

(۷) بادار : اکنون در پښتو بمعنی آقاست ، و از کلماتی است که از مدتهای قدیم در افغانستان مروج است ، در تاریخ سیستان بادار بوجعفر و بادار بوالفضل و بادار مظفر آمده (ص ۳۳۵) درینجا باداری بمعنی آقائی و سود است ؛ که تاکنون بهر دو صورت در پښتو مستعمل و زنده است ۰

(۸) لوړاوی : ازلوړ (بلند) بمعنی بلندی وتعالی خواهدبود ، ولی اکنون ازمیان رفته و باین شکل درناوی ( عزت وسنگینی ) نظیر این کلمه است ، که تاکنون زنده مانده و از درونند (سنگین) ساخته شده ۰

(۹) کول : شکل قدیم کهول است ؛ که درصفحهٔ ۳۲ گذشت ، درتذکرهٔ سلیمان‌ما کوهم کول آمده (دیده شود ص٦٤ پښتانه شعراء ، ج ۱) زینگوگراف اوراق تذکره ۰

(۱۰) تعبیر قدیمی باشد ازین‌عبارت : تربورمی ستر کړ ، یا تربورمی ستر کارونه وکړل

(۱۱) لور ، ر : ۲۱ ۰		(۱۲) ډاډینه : اطمینان ۰		(۱۳) بامم : ر : ۲۲ ۰

(۱٤) ودنه : بمعنی نشوونما دادن: اکنون وده بهمین‌معنی‌مانده ، وشکل‌ودنه ازبین‌رفته۰

(۱٥) دریځ ، ر: ۲۳ ۰		(۱٦) ستایوالی ، ر: ۲٤ ۰

شیخ کټه علیه‌الرحمه ، له «تاریخ سور» نقل کا : چه امیر کروړ عادل او ضابط او د ښې وینا خاوند ؤ . ده به هر کله شعرونه ویل ، په کال سنه (۱۵٤) هجري د **پوشنج** (۱) په جنګو کې مړسو ، او تر ده وروسته ئې زوی **امیر ناصر** ایوا دونه ضبط کړل ، او د غور ، او سور ، او بست ، او زمین داور پر مځکو خاوند سو . [۱۷] .

## «۷» ذکر د شیخ اسعد سوری علیه‌الرحمه

شیخ کټه په کتاب کې د « لرغونی پښتانه » له « تاریخ سوري » هسي نقل کا : چه **اسعد سوری** ، په غور کې اوسېدئ ، او هلته د **سوری خاندان** په پادشاهی کې ډېر عزتمند ؤ ، شیخ اسعد د **محمد** زوی ؤ . چه په کال سنه (٤۲٥) هجري په **بغنین** (۲) کې وفات سو . شیخ اسعد علیه‌الرحمه ، ډېر ښه اشعار ویل ، **نقل** کا : چه **سلطان محمود غازی** ، پرغور باندې د **امیرمحمد سوری** رحمة‌الله علیه سره جګړه وکړه ، او په **آهنګرانو** (۳) کې ئې محصور کا په دې وقت شیخ اسعد هم د آهنګران په کوټ کې ؤ ، هغه وقت چه سلطان محمود علیه الرحمه ، امیر محمد سوری ونیو ، او بندی ئې بوت غزنی ته ، نو امیر محمد سوري چه خورا زړه‌ور ، او عادل ، او ضابط امیر ؤ ، له غیرته د بند ، مړسو ؛ او شیخ اسعد ، چه دوست ؤ د امیرمحمد سوري ، پرمرګ ئې ساندی(٤) وویلې په یوه بولله(٥) کې چه قصیده په عربی ده(٦) .

---

(۱) پوشنج : بقول یاقوت بلده نزیه ومحکمی بود، دروادی مشجر نواحی هرات ، که تا آنجاده فرسخ مسافت‌داشت (مراصدالاطلاع ص۸٥) واین همان‌شهر معروفی‌است ، که ارباب مسالك وممالك وتاریخ بعد از اسلام زیادتر ذکر میکنند ، و مشاهیر زیادی ازآنجا برخاسته واملای عجمی‌آن پوشنګ است که بقول‌حدودالعالم : چند نیمهٔ ازهریست وازګرد وی خندق است و اورا حصاریست محکم (ص ٥۷) پوشنګ از اوایل اسلام تا هجوم مغل ازمعروفترین بلاد خراسان بود .

(۲) بغنین : ناحیتی است از زمینداور ؛ که اکنون بغنی ګویند ، وبین غور و زمین داور واقع است ، حدودالعالم هم آنرا بغنی ضبط کرده است (ص ٦٤) .

شیخ کته علیه‌الرحمه « از تاریخ سور » نقل کند : که امیر کرور عادل و ضابط ، و دارای اشعار خوبی بود ، و گاه گاهی شعر ها میگفت ، و به سال (١٥٤) سنه هجری در جنگهای **پوشنج** درگذشت ، و بعد از وی پسرش « **امیر ناصر** » مملکت ها را ضبط کرد ، و خداوند اراضی غور ، و سور ، و بست و زمینداور گردید .

## «٧» ذکر شیخ اسعد سوری علیه‌الرحمه

شیخ کته در کتاب « لرغوانی پښتانه » از « تاریخ سوری » چنین نقل کند که **اسعد سوری** در غور میزیست ، او در آنجا بدوران پادشاهی **خاندان سوری** بسیار معزز بود ، شیخ اسعد پسر **محمد** بود ، که درسال (٤٢٥) سنه هجری در **بغنین** وفات یافت . شیخ اسعد علیه الرحمه ، اشعار بسیار نیکو میگفت ، نقل کند : که **سلطان محمود غازی** ، در غوربا **امیرمحمد سوری** رحمة الله علیه در آویخت ، و وی را در **آهنگران** محصور ساخت . درینوقت شیخ اسعد هم در قلعهٔ آهنگران بود ، وقتیکه سلطان محمود علیه‌الرحمه امیرمحمد سوری‌را گرفت ، ومحبوس بغزنی برد، پس امیرمحمد سوری که امیر دلیر وعادل و ضابطی بود ، ازغیرت حبس مرد ، وشیخ اسعد ، که دوست امیرمحمد سوری بود ، برمرگ وی نوحه وفریاد برآورد ، در یك بولله ، که آنرا به عربی قصیده گویند .

---

(٣) آهنگران : قلعتی بود در غور (ر:٢٥) .

(٤) ساندی بمعنی نوحه وفریاد .

(٥) بولله : درین کتاب درچندین جای بولله بمعنی قصیده آمده وشاید این‌کلمه بعد از دورهٔ قدماء مرده باشد ؛ وازغنائم لغوی پښتواست که درین کتاب خوشبختانه حفظ شده‌است .

(٦) برای تفصیل واقعهٔ تاریخی امیر محمد سوری (ر:٢٦٠) .

### وله في القصيده

د فلك له چارو څه و کړم کوکار (١)
ز مولوی (٢) هر گل چه خاندي په بهار
هر غټول (٣) چه په بېديا غوړېده وکا
رېژوي ئې پاڼې (٤) کاندي نارپه نار (٥)
ډېر مخونه د فلك څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار
د واکمن(٦) له سره خول پرېباسي(٧) مړسي
د بې وزلو(٨) وينې توی کاندي خونخوار
چه له برمه(٩) ئې زمری رپي(١٠) زنگلو کې
له او کوبه(١١) ئي ډاري(١٢) تېرو(١٣) جبار
هم ئې غشی سکڼی(١٤) ډال د ژوبلورو(١٥)
رستمان ځنی ځغلا (١٦) کاندي په ډار[١٨]
چه ئې ملاوی نه کړېږي په غښتليو
دا فلك پر وکا څه کاری گذار ؟
په يوه گردښت (١٧) ئې پرېباسي له برمه
نه ئې غشی،نه‌ليندۍ(١٨) وي نه ئې سپار(١٩)
څه تېری (٢٠) څه ظلم کاندې اې فلکه !
ستا له لاسه ندئ هېڅ گل بيله خار

(١) کوکار : بضم اول و واو معروف ، فریاد ، فغان ، صیحه ، اکنون کوکاری بصورت جمع مؤنث مستعمل است ·
(٢) زمولوی : از مصدر زمولول (پژمرده ساختن) که ریشهٔ آن زمول پژمرده است ·
(٣) غټول یا غاټول ، یا خټول یا غاټوی بمعنی گل لاله است ·
(٤) پاڼې : مخفف است از پاڼی‌ئې ، ورنه جمع کلمهٔ پاڼه به یای معروف است ·
(٥) نارپه نار : دراصل چنین است ؛ ولی درپښتو ناړو ناړۍ بمعنی نار نباتاتست ، شاید ریشهٔ این دولغت پارسی و پښتو یکی باشد ، یا این کلمه تارپه تار باشد ·
(٦) واکمن : بمعنی اختیاردار ، و خداوند نیرواست ، قدما ، شاهان را واکمن میگفتند چنانچه درین کتاب چندین جا بنظر می‌آید و طوریکه در تذکرهٔ سلیمان ماکو می‌بینیم ستر واکمن یعنی نیرومند بزرگ درمورد شهنشاه استعمال شده ؛ وعلی‌ای صورة واکمن ازغنایم ادبی پښتو است درین کتاب ·

## وله فی القصیده

چه فریاد و فغان کنم ، از دست فلك ! هر گلیکه در بهار بخندد، آنرا پژمرده میگرداند
هر لالهٔ که در دشت و صحرا بشگفد : آنرا میریزاند، و برگهای آنرا متفرق میسازد
سیلی دست فلك، رخسارهای زیادیرا کبود میسازد وسرهای زیادی را در ته خاك سیاه می افگند!
خودرا از سرشاه می افگند ، و (شاه) میمیرد خون بیچارگان را (فلك) خونخوار می ریزاند
(کسیکه) از حشمت وی شیردرجنگل میلرزد: و از عظمت وی هر ظالم و جباری میترسد :
(کسیکه) تیروی، سپر جنگاوران را می شکافد: و رستم ها از ترس وی میگریزند :
(کسانیکه) نیرومندان نمی توانند کمرشانرا خم سازند فلك چگونه بر آنها ضربت کاری حواله میکند؟
بیك گردش آنهارا از فراز عظمت سرنگون میسازد و تیر و کمان وسلاح را ازدست شان میرباید
ای فلك ! این چه ظلم است ، و چه تجاوز ؟ از دست تست ، که هیچ گل بیخار نیست !

---

(۷) پرېباسي : از مصدر پرېیستل که بمعنی انداختن و ساقط کردن است .

(۸) بېوزله : تاکنون بمعنی بیچاره وغریب زنده است .

(۹) : برم به سکون اول وفتحهٔ دوم ، حشمت و جلال ، وعظمت .

(۱۰) رپي : به حاشیهٔ ص ۳٦ رجوع شود .

(۱۱) اوکوب : به واوین معروفین ، بمعنی برم است که همان جلال وحشمت باشد .

(۱۲) ډاري : یعنی می ترسد ، ازمادهٔ ډار که بمعنی ترس است ، ولی اکنون بعوض ډارل مصدر قدیم ډارېدل مستعمل است ، که فعل حال آن ډارېږي بمعنی میترسد می آید .

(۱۳) تېرو : به یای مجهول ظاهراً ازریشهٔ تېروتېری بر آمده ، وتېری ازحدخود گذشتن وظلم وتجاوز است ، تېرو به کیف نسبی ظالم ومتجاوز باید باشد ، ولی اکنون مستعمل نیست .

(۱٤) سکڼی : از مصدر سکڼل که بمعنی شکافتن و برش است ، که سکښتل هم درین مورد مستعمل است .

(۱٥) ژوبلور : ظاهراً ازژوبله که بمعنی جنگ وافگار کردن واضمحلال است به اتصال (ور) که ازادات نسبت است ساخته شده و قدماء درمورد جنگاور و عسکر جنگی و سرباز استعمال میکردند چنانچه درین کتاب مکرراً بنظر میرسد . واکنون هم این کلمه را درمورد عسکر میتوان گرفت .

(۱٦) ځغلا : از مادهٔ ځغل ، وزغل وځغستل که بمعنی تاختن و دویدن است ، ولی این صورت اکنون مستعمل نیست .

(۱۷) گردښت : بمعنی گردش و دوران .

(۱۸) لیندۍ : املای نسخهٔ اصل لندۍ ، بمعنی کمان است .

(۱۹) سپار: بسکون اول ، آلهٔ سرتیز آهنی است ، که درپارسی افغانستان اسپار گویند ، اکنون درامور زراعت بکار میرود ، شاید قدما بطور آلت جنگی هم استعمال میکردند .

(۲۰) تیری : تجاوز ، ظلم ، حاشیهٔ نمبر ۱۳ همین صفحه دیده شود .

په ويرژلو، لور(١) نکړې په زړه کراړيهٔ(٢) پر نتليو (٣) اوروې دغم ناتار (٤)
هيڅ روغی(٥) مې په زړه نسته ستا له څوره بېلوې په ژړا ژړ (٦) مين له يار
له تېريو(٧) دې اوښې څاڅي له اور يځيو چينې ژاړي په ورت ورت(٨) ستاله شنار(٩)
نه به لاس واخلې له څوره نه به لورې(١٠) نه به ملا(١١) کړې، له بېوزلو له ترار(١٢)
نه به زړه وسوځوې (١٣) په هيڅ باندې نه به پرېوزې له گر دښته له مدار
نه به وصل کړې مين له بل مينه نه به درملې (١٤) تپونه د افگار
ستا له لاسه دي پراته ژوبل زگېروي(١٥) کا هرپلو ته تپي زړونه په څار څار (١٦)
کله غوښې کاندې مراندې د زړگيو کله تېر باسې و گړې هوښيار
کله تکی(١٧) واچوې پر نازوليو کله څيرې کړې گريوان دنمنځی چار(١٨)
کله غورځوې واکمن له پلازونو (١٩) کله کښېنوې په خاورو کې بادار

(١) لور : به فتحهٔ اول وواو معروف ، بمعنی مهربانی وروداری ومهراست ، ولی اکنون بهمین صورت ازاستعمال افتاده ، و (لورېري) بمعنی : پيرزو و روا داری دارد ، در برخی از محاورات زنده است . (ر:٢١) .

(٢) کراړه : بسکون اول وفتحهٔ دوم ، وزورکی ماقبل آخر ، قروت سخت و خشك ، وهم هر چيز سخت و محکم را گويند ، که بزودی نشکند ، درينجا بمناسبت سختی ، صفت دل واقع شده . يعنی ای فلك سخت دل !

(٣) نتلی : به زورکی اول و دوم و سوم ، بمعنی افسرده و غمزده و محزون و مصدر آن نتل است .

(٤) ناتار : بروزن بازار ، بمعنی تاراج و يلغار و شدت طوفان باد و باران است .

(٥) روغی : از مادهٔ روغ ( صحيح و سالم ) بمعنی صحت و سلامت است ، که اکنون روغتيا مستعمل ، وروغی از بين رفته .

ژړ : (٦) بدو صورت ميتوان خواند ، اول اينکه ژړ صفت مين واقع گردد ، يعنی عاشق رنگ پريده ، زرد چهره را به فرياد و فغان از محبوبش دور ميسازی ، دوم اينکه ژړاژړ را يك اصطلاح مفقودهٔ ترکيبی بدانيم ، بمعنی شور وفغان وهياهو ، چون اين اصطلاح اکنون زنده نبوده ، بنابران احتمال دوم ابعد است .

(٧) تېری : چنانچه گذشت ، بمعنی تجاوز وظلم وتعدی است .

(٨) ورت ورت : بهسکون اول و فتحهٔ دوم ، تعبير صوتی است از جريان اشك .

(٩) شنار : اين کلمه در زبان پښتو شنيده نشده و نه در آثار ادبی آن بنظر رسيده ، شايد در بين قدماء موجود و زنده بوده و اکنون از بين رفته باشد ، در لطايف اللغات عبداللطيف بکسر اول بمعنی شوم و نامبارك وخرابی وننگ و عار ضبط شده ، که درينجا بهمين معانی درست می آيد .

(١٠) نه به لورې : از همان مادهٔ لور و لورل است يعنی مهربانی نخواهی کرد .

بر ماتم زدگان رحمی نداری ، ای سخت‌دل ! طوفان غم را برغمزدگان نازل می‌سازی !
از جور و ستم تو ، دلم سلامت نیست عاشق‌دلباخته‌را به‌فغان‌وفریاداز‌محبوبش‌دورمیسازی
ابرها از تجاوز تو اشك ها میریزد واز شومی تو چشمه‌ها به نالهٔ حزین میگرید
نه‌ازجوروستم‌دست‌خواهی کشید،و نه‌لطفی‌خواهی کرد نه‌با بیچارگان‌مضطرب‌همراهی‌خواهی‌نمود!
بر هیچ کس دلت نخواهد سوخت ازگردش و مدار خویش هم نخواهی افتاد
نه عاشقی را به محبوبش وصل : و نه جراحات‌اشخاص افگاررا مداوا خواهی‌کرد
ازدست‌تست که بهرطرف‌پیکرهای‌مجروح‌افتاده‌ومینالد و بهرسودلهای‌افگارنوحهٔ اندوهناك‌دارند
گاهی عروق دلها را منقطع میسازی ! و وقتی مردم هوشیار را میفریبی !
بر سر ناز دیدگان صاعقه می‌اندازی ! و گریبان پارسایان را میدری !
گاهی شاهان مقتدر را ازتخت فرومی‌اندازی و وقتی بادارها را برخاك سیاه می‌نشانی !

---

که اکنون ملتیا گوئیم بمعنی رفاقت و همراهی ، و ما استعمال قدیم آنرا در اشعار ملکیار غرشین هم می‌بینیم (دیده شود ص۵٦ ج۱ پښتانه شعراء) (ر: ۲۷) .

(۱۲) ترار : بفتحتین غالباً بمعنی آشفته ومضطرب است ، چه تراره بمعنی اضطراب ، وترور یا ترهور بمعنی مضطرب در بین متوسطین مستعمل بود .

(۱۳) وسوځوې : ازمصدر سوځول بمعنی سوختاندن ، که اکنون وسوځې عامتر است .

(۱٤) در ملې ، فعل است از مصدر در مل که در بین قدماء بمعنی علاج و درمان کردن بود ، ودرمل دارو و دواراهم میگفته‌اند ، واین مواد ازغنایم لغوی پښتو است درین کتاب .

(۱۵) زگېروئ : بـه سکون اول فریاد و نالهٔ مریض ومجروح .

(۱٦) ځارځار : درینجا بمعنی فغان و نوحه است .

(۱۷) تکه : به فتحهٔ اول و زورکی دوم ، صاعقه .

(۱۸) نمنځی چار . این کلمهٔ ترکیبی اکنون مستعمل نیست ، وازمورد استعمال توجیه میتوان کرد ، که معنی متقی ، پارسا وزاهد داشت ، چه نمنځه و نمنځل یعنی نیایش وپرستش است که نمو نځ بمعنی نمازهم ازین ریشه‌است ، وچار ،کار راگویند ، پس مجموعاً پرستشکار باید معنی‌داشته باشد .

(۱۹) پلاز : این کلمه بسکون اول دربین قدماء بمعنی تخت و اریکه بوده ، و اکنون از استعمال افتاده .

زموږ پرزړونو دي نن بیا یو غشی وویشت ودي ژوبلله (۱) په دي غشی هزار
پر سوریو باندي ویر(۲) پربووت له پاسه محمد واکمن چه ولاړی په بلدار [۱۹]
یووار سو اسیر پهلاس د مېر ځمنو انتقال ئي وکړ قبر لـه بلوار
په سماؤ (۳) ئي ودان آهنگران ؤ په تېکنه (٤) ؤ پردرست جهان او ښار (٥)
د محمود د ژوبلورو(٦) پهلاس کښېوت(۷) چه غزنه ته ئي باتلی (۸) پـه تلوار
ننګیالیو لره قید مرینه (۹) ده ځکه : سه (۱۰) ئي والوتله هسك ته پر دي لار
تر نړیـ ئي غوره خاوري ، هدیره کا د زمریو په ببرېو(۱۱) کله وي ښوار(۱۲)
پهدي ویر د غور وګړی تورنمری(۱۳)سول په دي ویر ، رڼا تیاره سوله دښار (١٤)
ګوره ښاخي رڼي اوښی له دي غرونو داکړونګی(۱۵) ساندیلی(۱٦) په شورهار
نه هغه زرغا (۱۷) د غرونو ، د ببد یا ده نه دزرکیو په مسا (۱۸) دی کتهار (۱۹)
نه غمّول بیا زرغونېږي په لاښونو (۲۰) نه بامي (۲۱) بیا مسېده (۲۲) کا په کهسار

---

(۱) ماضی‌است از ژوبلل بمعنی‌مجروح ساختن ، که اکنون این‌مصدر بصورت ژوبلول متعدی مستعمل است .

(۲) ویر : به کسرهٔ اول و یای معروف ، ماتم ، اندوه .

(۳) سما : بفتحتین ، صورت معنی مصدریست ، وازریشهٔ سم (درست ، وراست ، وصالح) و نظایرآن درین‌کتاب بسیارآمده مانند ځلا ، ملا ، زرغا و غیره ، و از مورد استعمال هم می‌توان دریافت که سما اصلاح و انصاف را میگفتند .

(٤) تېکنه : بکسرهٔ اول ویای معروف وزورکی سوم وچهارم، این‌لغت اکنون ازبین رفته ، وشاید در قدیم معنی عدالت را داشت ، ریشهٔ این‌کلمه را می‌توان تیك به یای‌معروف پنداشت ، که اکنون بمعنی اصل ومرکزمطلوب می‌آید ، واگریای‌آن مجهول خوانده شود تېك معنی آرام وسکون دارد .

(٥) اوښار : به ضمهٔ اول وواو معروف ، روشن ، هویدا .

(٦) ژوبلور دیده شود حاشیهٔ (۱۵) صفحه (٤۱) .

(۷) کښېوتل : درینجا بمعنی گرفتار شدن است .

(۸) باتلی: بلاشك شکلی‌است از بوتلی‌مشتق ازمصدر بوتلل که بمعنی‌بردن جانداراست.

(۹) مرینه : بمعنی مرگ و اکنون مستعمل نیست .

(۱۰) سه : به فتحهٔ اول بمعنی جان و نفس و اکنون ساه گوئیم .

(۱۱) ببرېـ : دراینجا بمعنی زولانه است .

(۱۲) ښوار . این‌کلمه قطعاً ازبین‌رفته ، ودرهیچ‌جا بنظر نگارنده نرسیده ونشنیده‌ام . ازمورد استعمال توجیه میتوان کرد ، که معنی صبر واستقامت و آرام وسکون را داشته‌است .

امروز باز بر دلهای ما تیری را زدی ! که به این تیرهزاران دل را مجروح ساختی

المی بر سر مردم سور فرود آمد : وقتیکه محمد، پادشاه مقتدر به داردیگر برفت

اول اسیر دست دشمن گـردیـد و بعد از آن بـه قبر انتقال نمود

آهنگران از اصلاحات وی معمور ودر تمام جهان به عدالت مشهور وظاهر بود

بدست عساکر محمود گرفتار آمد و به عجلت وی را به غزنه بردند

چون قید وحبس برای مردم غیورمرگ است بنابران درراه روحش به آسمان پرواز کرد

خاك سیاه مقبره را از دنیا برگزید بلی ! شیر در زولانه و زنجیر آرامی ندارد

مردم غور ازین مـاتم سیه‌پوش گشتند وهم بدین‌ماتم، روشنی شهر بتاریکی تبدیل شد

ببین ! که کوه هـا اشك میریزاند و آبشار هـا صدای نوحه وانین دارنـد

درکوهها ودشتهاهمان طراوت وسرسبزی پدیدارنی وکبك هـا صدای خنده و قهقهه ندارند

لاله در کمر هـای کوه باز نمی‌شگفد و بـا می در کوهسار نمی خنـدد

---

(١٤) ښار ، باشهر پارسی از یکریشه است ، و ازین برمی‌آید ، که دربین قدما مانند عصر حاضر این‌کلمه مستعمل بوده و طوریکه گفته شده ، مفغن جدیدالاختراعی نیست .

(١٥) کړونگی : درپښتوی‌قدیم معنی‌آبشار داشت، واکنون مستعمل وزنده نیست ، در شعرای قدیم تیمینی معاصر سلطان غیاث‌الدین غوری در مدح باغ ارم زمینداور ( دیده شود طبقات ناصری ص ٨١) شعری دارد ، که درآنجا هم‌کلمهٔ کړونگه بمعنی آبشارآمده (دیده شود پښتانه شعراء ، ج ١ ص ٥٨) .

(١٦) لی : فعل حال است از مصدر لوستل یا لولل که بمعنی گفتن است .

(١٧) زرغا : ظاهراً ازمادهٔ زرغون (سبز وخرم) حاصل مصدریست که اکنون مستعمل نیست ، و نظایرآن درین کتاب بسیار است (دیده شود حاشیهٔ ٣ ص ٤٤) .

(١٨) مسا : بفتحتین بمعنی خنده و مسېدل هم مصدر است بمعنی خندیدن ، و این‌کلمه دربین متوسطین هم مستعمل بود .

(١٩) کټهار : اسم صوت است ، که برقهقهٔ کبك اطلاق میگردد .

(٢٠) لاښ : بمعنی کمر کوه ، ولاښونه جمع آنست .

(٢١) بامی : نام گلی‌است واین‌کلمه شرحی دارد تاریخی ،که درملحقات کتـاب خواهید خواند (ر:٢٨) .

نه له غرجه (١) بیا راځي کاروان د مشکو     نه رادرومي غور ته بیا جوپې(٢) د **شار**(٣)
د پسرلی اوره تودې اوښی تو ینه (٤)     مرغلری بـه نیسان نکـړی نثـار
دا په څه چـه « محمد » ولاړ له نړیه     په ویرنه (٥) ئې سو غور ټول سوگوار
نه ښکارېږي هغه سور د سور (٦) په لتو     نه ځلېږي هـغه لمر پر دې دیـار
چه به نجلیو (٧) په نڅـا پـکې (٨) خندله     چه بـه پېغلو کا اتڼ قطار قطار
هغه غور په ویر نـاتار د واکمن کښېوست     هغه غور سو د جاندم(٩)غندې سوراړ(١٠)
لاس دې مات سه اې فلـکه چه دې وکا     محمد غندې زمرۍ د مړینې ښکار [٢٠]
شین زړگی فلـکه ! ولی لا ولاړ یې ؟     اې د غور غرونو پـه څه نسوئ غبار ؟
مځـکی ! ولی په رېږدلو (١١) نه پرېوزې ؟     لاندې باندې سه ! چه ورك سي دا شعار :
چه زمـرۍ غندې واکمن ځي لـه جهانه     چه څوك نکړي پـه نړۍ باندې قرار
سخ په تا اې «محمده» د غور لمر وې !     په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار (١٢)

(١) غرج : همان غرجستان یـا غرشستان یا غرستان تاریخی وطن ماست ، که ارباب مسالك بصور مختلف ضبط کرده‌اند ، یاقوت در معجم‌البلدان گوید که اصل این تسمیه غراست بمعنی کوه ، و غراز کلمات قدیم پښتو است ، یاقوت حدود این ولایت را غرباً هرات وشرقاً غور ، وشمالاً مروالرود وجنوباً غزنه می‌شمارد ، و گوید که ناحیهٔ وسیعی است دارای قرای زیاد، و نهر مروالرود دران است (مراصد ، ص٢٩١). حدودالعالم (ص٥٨) غرجستان را از نواح خراسان شمرده و گوید : که قصبهٔ اوبشین است و مهتران ناحیت را شار خوانند جائی بسیار غله و کشت و برز وآبادانست وهمه کوهست . . .

(٢) جوپه : به‌و او مجهول بمعنی کاروان است .

(٣) شار : حاشیهٔ اول همین صفحه خوانده شود .

(٤) توینه : یعنی میریزاند مزید علیه فعل تو یوی است ، از مصدر تویول (ریختاندن وافشاندن) .

(٥) ویرنه : از مادهٔ ویر(ماتم) بمعنی رثاء وسوگواری و ماتمداری است .

(٦) سوراول: بمعنی مسرت وخوشی است، وتجنیس تام‌است باسوردوم که نام قوم‌است . واین نام تاکنون درهرات ما موجود است، زورآباد و زوری موجوده همان سور آباد ، و سوری قدیم‌است، واین سور بقول منتخب ناصری که منهاج سراج درطبقات ناصری ازوی نقل کرده برادر سام نامی است ، که سلاطین شنسباني غور و بامیان از نسل آنهاست ( طبقات

از غرج باز کاروان مشك نمی‌آید　　و باز بسوی غور کاروانهای **شار** نمی‌رسد

ابر بهار اشك گرمی را میفشاند　　و نیسان گوهر را نثار نخواهد کرد

چرا ؟ که محمد از دنیا رفت　　در ماتم وی غور همه سوگوار گردید

در نواحی سور ، همان سور پدیدار نیست　　و نه همان آفتاب برین دیار میدرخشد

جائیکه دختران رقص کنان می خندیدند　　وجائیکه دوشیزگان درآن‌صف‌صف‌اتڼ میکردند

همان غور(پرطرب) به‌اندوه وماتم پادشاه نشست　　و همان غور ، مانند جهنم سوزان گشت

ای فلك ! دستت بشکند که مانند محمد　　شیری را شکار مرگ ساختی !

ای فلك سنگدل ! چرا هنوز برقراری !　　ای کوههای غور ! چرا غبار نگشتید

ای زمین ! چرا بزلزله نمی‌افتی !　　زیر وزبرشو! تا این شعار ازدنیا برافتد :

که پادشاهان شیروش از دنیا میروند　　و درین دنیا کسی را قراری نیست

خوشا ! برتوای محمد که‌آفتاب‌غوربودی !　　و همسر عدلت در دنیا نخواهد بود

---

(۷) نجلی : دختر نامزد ناشده ·

(۸) پکې : همان کلمهٔ که برخی ازاقوام پکښې تلفظ کنند ، عدهٔ از قبایل پکې گویند ، و ظرفیت را افاده میکند ·

(۹) جاندم : بسکون نون ودال زورکی دار ، تاکنون درمحاورهٔ کوهسار وعوام قراء بمعنی دوزخ است ولی ازمحاورهٔ اهل شهر و مدن افتاده ، و این کتاب زندگانی قدیم این کلمه را هم نشان میدهد ·

(۱۰) سوراړ : به ضمهٔ اول و واو معروف ، دشت خشك و سوزان و گرم ·

(۱۱) رېږدله : به یای مجهول وسکون سوم وزورکی چهارم وپنجم ، این‌کلمه اکنون ظاهراً مرده و ازاستعمال افتاده ، ودرآثار متوسطین هم بنظرنمی‌رسد ، وبلاشبهه به‌مصدر رېږ دېدل ( لرزیدن ) تعلق داشته ، و معنی زلزله را دارد ، و باستناد استعمال این شعر میتوانیم این کلمهٔ از دسترفته را واپس زنده سازیم ، و از غنایم ادبی ولغوی است که این کتاب بما سپرده ·

(۱۲) سار : این کلمهٔ اکنون بصورت ساری به زورکی ماقبل آخر ، بمعنی همسر و انباز ونظیر ، مستعمل و زنده است ، شاید که شکل قدیم آن سار بوده ·

ته پر ننگه وي ولاړ په ننگ کي مړ سوي هم پر ننگه دي په ننگه کا ځان جار (١)
که سوری دي په تگ ویر کاندي ویرمن (٢) سول هم به ویاړي (٣) ستا په نوم ستا په ټبار (٤)

په جنت کي دي وه تون (٥) زموږ واکمنه
هم په تا دي وي ډېر لور (٦) د غفار

## «٨» ذکر د ښکارندوی علیه الرحمه

چه د غور ؤ ، پوه سه په دي : چه شیخ کټه متي زی رحمة الله علیه کښلی دئ ، په کتاب « لرغونی پښتانه » کي ، چه په « تاریخ سوري » کي دئ : چه **ښکارندوی** میشته د غور ؤ اوکله کله به په غزنه او بست کي هم اوسېدلی . پلار ئي **احمد** نومېد ، او د غور د **فیروزکوه** (٧) کوټوال (٨) ؤ ، ښکارندوی د **سلطان شهاب الدنیا والدین محمد سام** (٩) **شنسبانی** (١٠) به پادشاهی کي مخور (١١) او د درناوی (١٢) خاوند ؤ ، او هغه وقت چه هغه سلطان پر هند یرغل (١٣) کاوه، ښکارندوی چه شاعر او عالم سړی ؤ، هم،

---

(١) جار : قربانی و فدا کردن .

(٢) ویرمن : ماتم زده و سوگوار .

(٣) ویاړی : از مصدر ویاړل (افتخار) حاشیه ١١ صفحهٔ ٣٣ هم دیده شود .

(٤) ټبار : اکنون بدون الف ټبر گوئیم ، که باهمان تبار پارسی همریشه است ، ازین کتاب میتوان فهمید ، که این کلمه اززمان قدیم در پښتو مستعمل بود ، و مغفن نوی نیست .

(٥) تون : حاشیهٔ (٩) صفحه (٢٩) دیده شود .

(٦) لور : (ر: ٢١) .

(٧) فیروزکوه : پای تخت سلاطین آل شنسب غور بود ، که درحین هجوم مغول تخریب گردید ، وازمعمورترین بلاد وطن ما بود ، که مدتها مرکزیت داشت ، ومورخین آندوره مانند منهاج سراج و غیره آن را ستوده‌اند .

(٨) کوټوال :کلمهٔایست پښتو ، که ازعصر آل‌سبکتکین مستعمل ومأموریت مهمی بوده درتشکیلات اداری آن دوره ، چنانچه درتاریخ بیهقی و گردیزی و طبقات ناصری زیاده‌تر بنظر میرسد ، و مرکب است از کوټ ( قلعه ) ووال که از آدات تصاحب و نسبت است که هردو کلمه جمعاً قلعه‌دار ومحافظ شهر را معنی میدهد ، واین کلمه تاکنون دروطن‌ما مصطلح

برغیرت‌محکم‌بودی ، ودرآن‌راه جان دادی! به غیرت و حمیت خود را فدا کردی!
اگراکنون‌ازرحلت‌توسوری‌هاغمگین وماتمزده شدند فردابه نام تو ودودمان توافتخار خواهند کرد
مقر و مأوای تو بهشت باد ، ای پادشاه ما
رحمت و مهر خدای بخشنده بر تو باد !

## «۸» ذکر ښکارندوی علیه‌الرحمه

ازغور بود ، و بدان که : شیخ کټه متي زی رحمته‌الله علیه نبشته است ، درکتاب «لرغونی پښتانه» که از « تاریخ سوری » نقل‌کرده : که **ښکارندوی** ساکن **غور** بود ، و گاه گاهی در غزنه و بست میزیست ، پدرش **احمد** نـامداشت ، وکوتوال **فیروزکوه** غور بود ·

ښکارندوی بدوران‌پادشاهی**سلطان شهاب‌الدنیا والدین محمد شنسبانی** معزز ودارای مقام محترمی بود ، وقتیکه سلطان‌موصوف برهند می‌تاخت ، ښکارندوی که شخص شاعر و عالمی بود ، نیز ،

---

(۹) درنسخهٔ اصل سلم نوشته شده وبلاشبهه سام‌درست‌است، که از (۵٦۹) تا(٦۰۲ ﻫ) حکومت راند وبه معزالدین شهرت یـافت· وی پسر بهاءالدین سام ( ۵۵٤ ﻫ ) و بـرادر غیاث‌الدین محمد (۵۵۸ــ۵۹۹ ﻫ) است· (دول اسلامیه ص ٤۵۸) ·

(۱۰) شنسبانی : (ر : ۲۹) ·

(۱۱) مخور : این‌کلمه اکنون بسیارکم مستعمل‌است واز مخ (روی) وور (ادات‌نسبت) ساخته شده ،که معنی رویدار و معزز را میدهد ·

(۱۲) درناوی : این‌کلمه هم تقریباً ازبین رفته ، ودربین قدماء زنده ومستعمل بود ، چنانچه دراشعار بیټ نیکه که تذکرهٔ سلیمان ماکومحفوظ داشته هم این‌کلمه بنظرمی‌آید، (دیده شود ص ٤۹ ج‌اول‌پښتانه شعراء)این‌کلمه ازریشهٔ دروند (سنگین) برآمده ، و معنی سنگینی و عزت و احترام را دارد ·

(۱۳) برغل : هجوم ، تاخت ، حمله (ص ۳٤ دیده شود) ·

د هغه سلطان په لښکرو کې ؤ ، او هسې وايي : چه ښکارندوی په مدح کې د سلطان محمد سام ، او **سلطان غياث‌الدين غوری** [۲۱] دستاينې (۱) قصيدې لري ، چه بوللی (۲) دی، **محمد ابن‌علی** وايي : چه بست کې ما د ده د بوللوغټ کتاب وليدئ ، اوله هغه څخه مې دغه بولله‌چه د محمد سام عليه‌الرحمه ستاينه ده وکښله :

## القصيدة فی المدح

بيا ئې ولونل(۴) په‌غرونو کښې لالونه(۵) د يسرلی ښکلونکی (۳) بياکړه سنگارونه
طيلسان زمردی واغوسته غرونه مخکه شنه ، لاښونه شنې ، لمنې شنې سوې
مرغلرو باندې (۶) و ښکلل (۷) بڼونه د نيسان مشاطې لاس د مچيدو دی
زرغونو بڼوکښې ناڅې زلمی جونه (۹) د غټولو جنډی (۸) خاندې وريدې تـه
هسې وگانډل(۱۱)غټولو سره پسولونه(۱۲) لکه ناوی چه سور ټيك (۱۰) په تندی وکا
په ځلا (۱۴) ئې سوه رانه خپاره دښتونه مرغلـری چـه اورو وخونوليـه (۱۳)

(۱) ستاينه : ستايش ومدح .

(۲) چنانکه درحاشيۀ۵ ص ۳۹ گذشت بولله بمعنی قصيده است .

(۳) ښکلونکی : ازمصدر ښکلل ، که درحاشيۀ ۴ ص۲۷ هم گذشت ، وبمعنی آراينده وزيباکننده است .

(۴) لونل مصدری‌است که اکنون مستعمل نيست ، بمعنی پراگندن وپاشيدن به‌حاشيۀ(۱) ص ۳۶ و ملحقات کتاب رجوع شود (ر:۲۰) .

(۵) لال : در پښتو همان لعل است ، و اين‌کلمه از قديم بهمين صورت در پښتو مستعمل است ، شايد صورت معرب‌آن لعل بوده باشد . درپارسی دورۀ غزنوی و غوری لعل مجازاً بمعنی سرخ و احمر استعمال ميشد ، و در زبانهای هندی هم لال سرخ راگفته‌اند .

(۶) باندې مخفف باندې ئې است .

(۷) وښکلل : صورت فعلی است ازمصدر ښکلل ، يعنی آراست ، حاشيۀ ۳ همين‌صفحه و حاشيۀ ۴ ص ۲۷ ديده شود .

(۸) حاشيۀ ۱ ص ۲۶ ديده شود.

(۹) جونه : شکلی است ازجمع کلمۀ نجلۍ که جمع آن نجونی می‌آيد ، وآنرا جلۍ

در لشکر سلطان بود ، وچنین گویند : که شبکارندوی درمدح سلطان محمد سام ، **وسلطان غیاث‌الدین غوری** ، قصاید مدحیهٔ دارد ،که آنرا « بوللی » گویند ، **محمدابن علی** گوید که دربست یك کتاب ضخیم قصاید وی را دیدم ، و این قصیده را ،که درمدح محمد علیه‌الرحمه است ازآن کتاب نگاشتم ·



## القصیدة فی المدح

مشاطهٔ بهار باز آرایش ها کرد　　باز در کوهها لعلها را پراگند
زمین ، کوه وکمر ، دمن سرسبز شد　　کوهها طیلسان زمردین را پوشید
دست مشاطهٔ نیسان درخور بوسیدن است　　که باغها را به گوهر آراست
لاله بگل ر ید ی میخندد　　در باغهای سرسبز دوشیزگان میرقصند
مانندعروسیکه تیک‌سرخ‌را برجبین گذارد　　لاله‌خودراهمچنان‌به‌زیورهای‌سرخ‌آراست
گوهری که ابر ها نثار کرد :　　از تلالؤاش دشتهای وسیع روشن شد

---

نشده باشد پیغله گویند ·

(۱۰) تیك : به یای معروف ، زیوری‌است ،که ازطلا سازند ، وبه‌شقیقه یاجبین آویزند شاید ازکلمهٔ تیك به یای مجهول بمعنی شقیقه ریشه گرفته باشد ·

(۱۱) وگانل : ماضی است از مصدر نامستعمل گانل ،که شاید در قدیم متداول بود ، واز ریشهٔ گانه یاگینه است که معنی زیوردارد ، پس مصدر گانل باید معنی آراستن و زیور بستن داشته باشد ·

(۱۲) پسول : به سکون اول و واومجهول بمعنی همان گینه و زیور است ·

(۱۳) وخونولیه : غالباً ماضی است از مصدر خونول که اکنون باتمام مشتقات خود از بین رفته ، و تنها خونی به ضمهٔ اول و واو معروف و نون مفتوح بمعنی نثار مانده است ، پس خونول نثارکردن است، چون مرغلری جمع مؤنث‌است پس باید صیغهٔ فعل ماضی‌مطلق و خونولې بیاید ، که وخونولیه لهجه ایست از آن ، و این مصدر با مشتقات آن از مواد غنیمت زبان است ·

زرغونو مځکوکې ځل (۱) کا لکه ستوریه چه پر هسك باندې ځلېږي سپين گلونه (۲)
سپينې واورې ويلېده كاندي بهېږي لكه اوښې د مين په گريوانونه
هر پلورنې والې (۳) بهاندي خاندي له خوښيه سر وهي له سينگړونه (٤)
هر پلو د گلو ورم دی لونلئ (۵) تهوا (٦) راغله له ختنه كاروانونه
د مسيح په پو (۷) به مړو ژوندون بيامونده پسرلی مگر مسيح سو په پوكړونه (۸)
له مړو خاورو ئې آغلی (۹) گل راويوست وچ بېديا او غر ئې كړله جنتونه
سړیجاجي (۱۰) چهرامشت كړرامشتگرو (۱۱) گهيځ چونې (۱۲) چه په بڼ وكا ږغونه [۲۲]
په بربڼ (۱۳) چهږغ دچونيو نغوږېده (۱٤) سي تهواچندی (۱۵) سره پيودی (۱٦) اشكلونه (۱۷)
د زلما (۱۸) تماپی راغلی دی پر جنهيو لكه پېغله غوتی كاندي مكيزونه (۱۹)
د پوپلو (۲۰) مخ سور كړئ پسرلی دئ يو دبل په غاړه اچوی لاسونه
د هنداروپهځېرغرونه سپين و ړنگن (۲۱) دی چه پر واورو باندې ځل (۲۲) وكا لمرونه
پهغورځنگ غورځنگ له خولې ځگونه باسي لكه شڼ (۲۳) هاتی شها كاندي سيندونه

---

(۱) ځل : رخشيدن و نورافشانی حاشيه ۱٤ ص ۵۱ ديده شود .

(۲) بضرورت شعری كلمات بيت پيش وپس شده ، برای فهميدن مقصد، بيت بايد چنين خوانده شود : سپين گلونه په زرغونو مځكوكی ځل كا ، لكه ستوری چه پر هسك باندې ځلېږي .

(۳) والې : جمع واله يعنی جوی است ، كه ولې و ويالې هم گويند .

(٤) سينگړ : اين كلمه دربين متوسطين بصورت سنگيړ هم استعمال واكنون درقندهار سنگړه هم تلفظ كنند، معنی اين كلمه سنگلاخ است. خوشحال خان گويد :

د ناكس د تربيت سره څه كاردی ☆ دسنگيړ د زراعت سره څه كاردی ؟

(۵) لونلئ : بمعنی پراگنده و پاشيده به حاشيه ٤ ص۵۰ رجوع شود (ر۲۰).

(٦) تهوا : مخفف است از تهوايې (توگوئی و توتصوركنی) و اين اصطلاح تاكنون زنده است .

(۷) پو : به ضمهٔ اول وواو معروف ، بمعنی دميدن است ، وپو،دم را هم گويند .

(۸) پوكړونه : شكلیاست از پوكړنه كه بمعنی دميدن است .

(۹) آغلئ : بمعنی زيبا و آراسته و خوشگل و قشنگ استومؤنث آن آغلې

گلهای سپید درزمین‌های سرسبزمی‌درخشد　　مانند ستارگانی که بر آسمان فروزانند
برفهای سپید میگدازد و جاری است　　مانند اشکی که‌در گریبان‌عاشق‌سرازیر گردد
جوی های صاف بهرسوجاری وخندان‌است　　از مستی سر به سنگلاخ میزند
رایحهٔ گل بهر سو پراگنده است　　گوئی : که از ختن کاروانها رسیده
از دم **مسیحا** مردگان زندگانی می‌یافتند　　مگر بهار ، دم مسیحا دارد ؟
از خاك مرده ، گل زیبا را برآورد　　ودشت خشك‌و کوه را(نظیر)بهشت گردانید
انسان تصورمیکند، رامش رامشگران‌است:　　سحرگه که بلبل در بوستان میسراید
درباغ بلند چون صدای بلبل ها شنیده شود　　گویی :که شاعری اشعار را نظم میکند
موسم جوانی گل ها رسیده　　و غنچه مانند دوشیزه بناز میخندد
بهار رخسار گل پوپل را غازه زده　　و دست بگردن یکدیگر است
کوهها مانند آئینه سپید و مشعشع است :　　وقتیکه‌آفتاب بر برف‌های‌سپیدنور‌افشانی کند
دریا با جست و خیزکف بدهان است :　　و مانند پیل مست ، مستی میکند

(۱۰) جاجي : فعل حال است از مصدر جاجل بمعنی فکرکردن و اندیشیدن و تصور کردن ،که این مصدر با همهٔ مشتقات خود از بین رفته ، و تنها جاج بمعنی فکر بصورت نادر در زوایا مانده ·

(۱۱) رامشت : بمعنی طرب و ساز و سرودن ، و رامشگر سراینده و مطرب است ، واین کلمات در پارسی هم موجود است ، ولی صورت مستعمل آن رامش ورامشگراست ·

(۱۲) چونہی : ظاهراً بمعنی بلبل است ، و اکنون این‌کلمه ازبین رفته ، و مزید علیهٔ آن خاچونہی در بین بعضی از قبایل کاکړ بمعنی بلبل‌گفته می‌شود ، در پښتو چوڼ صدای پرنده است و چونہیدل مصدریست ازان ریشه ،که چونہی هم بلاشبهه متعلق آنست ( حاشیهٔ ٤ ص۳۰ دیده شود) ·

(۱۳) بربڼ : حاشیه ۲ ص ٢٦ دیده شود ·

(١٤) نغوږیدل : **مصدریست** قدیم ،که اکنون متداول نیست ، بمعنی شنیدن و سماع ، خوشحال خان‌گوید : « دنیکخواه خبری نغوږه » ودرین‌کتاب مشتقات آن زیاد آمده ·

(۱۵) ر ۰ ۳۰ ·

(١٦) پېودی : از مصدر پېودل یعنی نظم و برشته‌کشیدن و سلك ·

(۱۷) ر : ۳۱ ·

(۱۸) زلما : جوانی (ر : ۲۷) ·

(۱۹) مکیز : تبسم ، ناز ، عشوه ·

(۲۰) پوپل : ر : ۳۲ ·

(۲۱) وړنگن : منسوب به وړانگه ( شعاع ) بمعنی مشعشع و درخشان ·

(۲۲) حاشیهٔ ۱ ص۵۲ دیده شود ·　　(۲۳) ر : ۳۳ ·

نه به چونې(١) په ستایه(٢) دجنډیومویږسي نه بـه موږ سم د سلطان په صفتونه
د **شنسب** د کهـاله ختلی لمر (٣) دی د پسرلی په دود ودان لهده رغونه (٤)
د ښندو(٥)اورو ئې درست ایواد زرغون کړ له **قصداره**(٦) تر **دیبله**(٧)ئې یونونه(٨)
په زابل چه دبری پر نیلی(٩)سپور سي(١٠) پـه **لاهور** ئې د مېرانی گزارونه
نه ئې څوك مخ تـه دري (١١) د مېرځمنو نـه ئې توری ته ټینگېږي کلك ډالونه
د اسلام د دین شهـاب دنړۍ لمر دئ تورستهان (١٢) ئې کړ رڼا په جهادونه
هره پلا چه دی پر هند و سند یرغل کا رڼوری توره نړۍ په شهابونه
په پسرلی چه ئې تېرون (١٣) په **اټك** وکا غاړه غاړه ئې تری(١٤) سولله (١٥) زړونه
نه بهدهغندي روڼ ستوری پههسك ځلي(١٦) که څه پورته سي له غوره ډېر میړونه
نه به راولي جگړن (١٧) د سیند په لوری نه به بری(١٨)څوك دهندچناره ښهرونه[٢٣]
نه به څوك زلمی د غور سره راغونډ کا دداور(١٩)توری بهچېرې(٢٠)کاځلونه(٢١)
یو خـاوند شهابالـدین دئ چه ئې وکا په هر لوری هر ایواد ته یرغلونه

(١) چونې : حاشیهٔ ١٢ص٥٣ و ٤ ص ٣٠ دیده شود ، بعد ازین بیت حصهٔ گریز است در قصیده .

(٢) ستایه : بمعنی همان ستاینه است ،که مدح و ستایش راگویند .

(٣) ختلی لمر : بمعنی شمس طالع ، و در پښتواین اصطلاح درمورد مدح گفته میشد .

(٤) راغه :که جمع آن رغونه میآید بمعنی دامنهٔ کوه است .

(٥) ښنده : از مصدر ښندل بمعنی اعطاء وبخشش‌است ،که اکنون ښانده خوانیم .

(٦) قصدار ، ر:٣٤ .

(٧) دیبل ، ر : ٣٥ .

(٨) یون : سفر و رفتار .

(٩) نیلۍ : اسپ بور ،کسرهٔ اول و یای معروف و فتحهٔ لام .

(١٠) سی : درنسخهٔ اصل‌ازطرف خودنویسندهٔ کتاب قلم‌خورده، وسوهم‌خوانده میشود.

(١١) دري : بمعنی دریږي کنونی یعنی‌می‌ایستد ، واین فعل‌اکنون با مصدرآن‌که باید درل (ایستادن) باشد ازبین رفته .

(١٢) ستهان : بمعنی ظرف ، وکشور ، مملکت ، تحقیق مزید این کلمه در آخر کتاب دیده شود ( ر : ٣٦ ) .

(١٣) تېرون . درینجا بمعنی گذر و گذشتن است ، در بعضی مواقع بمعنی تجاوز و ظلم هم آمده .

نــه بلبل از ستایش گل سیر میــگردد	و نه من از صفت سلطان سیر خواهم شد
آفتاب طالع دودمان **شنسب** است	ازدست وی‌مانند بهاردشت ودمن سرسبزاست
ابربخشش‌های وی‌تمام کشوررا سرسبزساخت	از **قصدار** تا **دیبل** مورد تاخت های ویست
وقتیکه از زابل بر رخش ظفر سوار گردد	بر **لاهور** ضربت هــای مردانه وارد میکند
از دشمنان کسی باوی مقــابل شده نمیتواند	وسپرهای محکم‌به‌شمشیروی‌ایستادگی کرده‌نمیتواند
شهاب دین اسلام ، و آفتاب جهان است	تاریکستان را به نور جهاد روشن گردانید
در هر نوبتی کــه بر هند و سند بتازد	دنیای تاریك را به شهاب نورانی میکند
وقتیکه در موسم بهار بر **اتك** گذشت	دلهای‌مردم کران‌تاکران‌دریاپلی‌راتشکیل‌داد
مانندوی‌ستارهٔ‌درخشانی برآسمان‌نخواهدتافت	ولو از غور مردان زیــادی برخیزد
نه کسی بازلشکررا به‌سوی سیندخواهدآورد	ونه‌شخصی‌شهرهای‌وسیع‌هندرافتح‌خواهدکرد
نه کسی جوانان غور را فراهم خواهد ساخت	شمشیر هــای داور باز بکجا خواهد تافت ؟
تنهــا خداونــد شهاب الدین است :	که بهر سو و هرکشور تاختها کرد .

---

تیرېدل بمعنی گذشتن برآمده باشد ، چون اکنون این کلمه مرده ، بنابران توجیهاً میتوان بمعنی پل آنرا گرفت ، با مورد استعمال هم موافقت دارد .

(۱۵) سولل : این فعل بدو لام اکنون مستعمل نیست ، عوض آن سول یعنی (شدند) گفته میشود .

(۱٦) ځلی : فعل حال است ازمادهٔ ځل وځلا وځلیدل (درخشیدن) ولی اکنون عوض آن ځلېږي گوئیم، درین کتاب مکرراً ځلی، ځلم آمده ، وثابت میگردد ، که قدماء چنین میگفتند .

(۱۷) جگړن : منسوبست به جگړه یعنی جنگ و پیکار ، نویسندهٔ کتاب بالای این کلمه لشکر نوشته ، و از چندین جــائیکه درین کتاب این کلمه آمده پدید می‌آید ، که جگړن در بین قدماء بمعنی لشکر و عسکر بود ، و اکنون هم میتوانیم درمورد لشکر تعمیم بدهیم .

(۱۸) بری : فعل حال است از مصدر مردهٔ برل یعنی فتح کردن ، که این مصدر با تمام مشتقات خود از بین رفته ، و تنها بری (ظفر) اکنون مستعمل است .

(۱۹) داور: همان منطقهٔ تاریخی وطن ماست ، که اکنون هم‌زمین داور گوییم، بر کنار هلمند واقع ، و در بین مورخین و ارباب مسالك و ممالك شهرتی داشت .

(۲۰) چېری : در اصل چری نوشته شده .

(۲۱) ځلونه : جمع ځل است ( حــاشیهٔ ۱ ص ۵۲ و ۱٤ ص ۵۱ دیده شود ) بمعنی رخشیدن و لمعان .

په جوپو جوپو جگړن ئې هند ته یون کا		چه د غور بادار همت وکا ، زغلونه (۱)
نن په سیند باندې تېرېږي يرغل کاندي		په پرتم (۲) ئې زمری رېږدي په زنگلونه
ځپان(۳) سیند ئې هم له ډاره ایلائی(٤) کا		پر اوږو وړي د غوریانو ښه ایړونه (٥)
په هرکال اټك (٦) د ده ښه راغلې کاندي		غوړوي په څنډو خپل پاسته سالونه (٧)
پښتونخوا (٨) ښکلی ځلمي چه زغلي هند ته		نو آغلیه ( ٩ ) پېغلې کاندي اتڼونه
زرغونې ختی (١٠) اغوستی وي دې غرونو		بټ بېدیا هم پسوللی ( ١١ ) وي ځانونه
هرګهیځ چه‌لمرڅرکېږي(١٢)له‌خاتیځه(١٣)		څوچه یون‌کاد لویدیځیه(١٤)په څنډونه(١٥)
که بر پڅر(١٦)وي، که‌غرمه‌وي که برمل(١٧)وي		که‌لرمل(١٨)که لمرلوېده که ترملونه(١٩)
د شهاب جگړن به نه کښېني له زغلو (٢٠)		نه به پرېږدي دا زلمی خپل بهیرونه (٢١)
زمری‌کله کاږي ځان(٢٢) له يرغلګريو(٢٣)		څو ئې نکا مات مټونه(٢٤) ورمېږونه (٢٥)

---

(١) زغل : به سکون اول و فتحهٔ دوم بمعنی تاخت است · ومصدر زغستل و زغستا هم ازین ریشه است · خوشحال‌خان گوید :
زه په بیلتانه کې دوصال نارې وهمه ☆ څوك چه او به واخلی و پایاب و ته‌ئې زغل شي ·

(٢) پرتم : شکوه و دبدبه ·

(٣) ځپان : به فتحتین بمعنی مواج است ، چه ځپه موج را گویند ·

(٤) ایلائی : بمعنی اطاعت وخضوع ورام بودن است ، چه‌ایل بمعنی رام وخاضع ومطیع در اشعار متوسطین بسیارآمده ، ولی ایلائی بصورت مصدری دیده نشده ·

(٥، ایړ : در پشتو بمعنی یکـدسته‌کشتی هاست ، و این کلمه هنوز هم در بعضی قبایل زنده است ، و فرهنگها آنرا ضبط کرده ·

(٦) اټك : بفتحتین ، دریای سندرا درمواضعی که ازشرق پشاورمیگذرد، اتك خوانند ·

(٧) سال : بمعنی سرمه ریگ است ، و این‌کلمه اکنون عمومی نبوده و فقط در قبایل سمت جنوبی مستعمل است ·

(٨) پښتونخوا : در اصل پښتونخا نوشته شده است ·

(٩) آغلی : قشنگ و زیبا ، حاشیهٔ ٩ ص ٥٢ خوانده شود ·

(١٠) خت : به زروکی اول که جمع آن ختی می‌آید ، در پښتو بمعنی پیراهن تاکنون در بعضی قبایل زنده است .

(١١) پسوللی : مشتق است از مصدر پسولل که اکنون جز پسول که بمعنی زیوراست ، مصدر و مشتقات آن از بین رفته ، پسولل و گاڼل هر دو مصادر مترادف و بمعنی آراستن و تحلیه است ·

(١٢) څرکېږي : از مصدر څرکیدل که بمعنی طلوع است ، و این مصدرهم با مشتقات آن اکنون از بین رفته ·

لشکر وی دسته دسته بهند سفر میکند : وقتیکه بادار غور مردانه بتازد

امروز بر سیند میگذرد ، و هجوم می‌برد از شکوه وی شیران در جنگل ها می‌لرزند

دریای مواج هم از ترس به‌وی اطاعت میکند و کشتی هائ غوریان را بردوش خود میبرد

اتك هر سال به وی خوشامدید میگوید وریگهای نرم خود را بر کرانها می‌پراگند

چون جوانان قشنگ پښتونخوا بهند میتازند دوشیزگان زیبا اتڼ میکنند

کوهها هم البسهٔ سبز پوشیده است و دشتهای خشك هم خود را آراسته است

سحرگه که آفتاب از مشرق بر می‌آید تا به افق مغرب سفر و رفتار میکند

در ضحی ، و چاشت ، و پیشین و دیگر ، و مغرب ، و شام :

لشکر شهاب از تاخت نخواهند نشست واین‌جوانان‌سلسلهٔ‌رفتارخودرانخواهندگسیخت

بلی ، شیر از پیش تا زندگان نمی‌گریزد تا که بازو و گردن آنها را نشکناند

---

(۱۳) خاتیځ : بالای این کلمه ازطرف نویسندهٔ نسخهٔ‌اصل،ای‌مشرق نوشته ،که اکنون ما آنرا بصورت مرکب ( دلمرختوخوا ) گوئیم ، ولی این کلمه با لوېدیځ که بمعنی مغرب است از غنایم ودایعی است که این کتاب بما داده ، ظاهراً خاتیځ از ریشه های ختل (طلوع) وځی (ظرف) برآمده ، که عیناً معنی مطلع و مشرق را میدهد ·

(١٤) لوېدیځ : بمعنی مغرب که نویسندهٔ کتاب هم (ای‌مغرب) بالای آن نوشته ، و از ریشه های لوېدل (غروب) وځی (ظرف) برآمده باشد ·

(١٥) څنډونه : درنسخهٔ اصل بالای این‌کلمه (ای‌فق) نوشته‌اند ، اکنون ما څنډه بمعنی کران و حاشیه داریم ، ولی څنډونه بمعنی افق از غنایم مواد لغوی همین ریشه است ·

(١٦) بريځر : اکنون هم در بعضی قبایل بمعنی ضحی و مجازاً نان ضحی و شام مستعمل است ·

(۱۷،۱۸،۱۹) بالای این سه‌کلمه معانی آن پیشین ودیگر وشام نوشته‌اند (ر:۳۷) ·

(۲۰) زغل : حاشیهٔ ۱ ص ٥٦ خوانده شود ·

(۲۱) بهیر : یا بییر ، بمعنی قطار و جماعت مسلسل و سلسلهٔ مردمی است که متعاقب یکدیگر روند ·

(۲۲) ځان کښل : اصطلاحی است بمعنی گریز کردن ، و خود را از کاری به بهانه کشیدن ·

(۲۳) یرغلگری : بمعنی متهاجم و تازنده است ، چه یرغل تاخت و هجوم را گویند ·

(٢٤) مټ : به ضمهٔ اول که جمع آن مټونه است بمعنی بازو .

(٢٥) ورمېږ : به فتحهٔ اول و یای مجهول ، بمعنی پشت گردن است که مغزی هم گویند ·

یا به جگ کا د بریو رپی (۱) په هند کې یا به پرېږدي (۲) هم په دې چاره سرونه
یا بـه وران کا بودتونونه (۳) د بمبنو (٤) یـا بـه سره کانـدي په وینو ایوادونه
په رنبا اوسې ته تل د دین شهابه ! نوم دې تل وه پردریځ (۵) په (٦) نمزد کونه [۲٤]
څو رانه سي ستا په توره د هند لوریه څـوچه نست (۷) کړې له نړیـه بودتونونه
ستا په زېرمه (۸) دی خاونده لوی ښتن وي موږ خو ستا په مرسته یونه (۹) څو چه یونه

## «۹» ذکر د زبدة الفصحاء ابومحمد هاشم

## ابن زید السروانی البستی رحمة الله علیه

په « لرغونی پښتانه » کې هسې حکایت کا شیخ کټـه رحمة الله علیه ( ۱۰ ) : چه **ابومحمد هاشم** د **هلمند** په **سروان** (۱۱) په سنه (۲۲۳) هجري قدسي زېږېدلی ، او په بست کې ئې لـه علماء او فصحاء څخه لوستنه وکړه ، او ورروسته ولاړ ، پـه **عراق** ئې په کلوکلو د لویو ائمه څخه سمع وکړه ، او **ابن خلاد** چه څرګند (۱۲) ؤ په **ابی العینا** (۱۳) سره ئې په بغداد کـې عمرونه تېر کړل ، او له هغه ئې د عـربي بلاغت او اشعار ولوستل ، او پـه کال ( ۲۹٤ ) سنه هجري قدسي لـه عـراقه بیسار ته راغـئ ، درې کالـه و روسته

(۱) رپی : کاتب کتاب بالای این کلمة ترجمهٔ بیرق نگاشته ، ولی اکنون ازیین رفته ، و رپېدل مصدریست که اکنون بمعنی اهتزاز و لرزش مستعمل است ، شاید بمناسبت اهتزاز قدماء بیرق را رپی یعنی مهتز میگفتند .

(۲) پرېښوول بمعنی ترك کردن و گذاشتن است ، و اکنون بعوض پرېږدی درین چنین مواقع کښېږدی از مصدر کښېښوول می‌آید ، که تنها گذاشتن و ماندن معنی دارد .

(۳) بودتون : محشی بالای این کلمه بتخانه نوشته ، شرح این کلمه در آخر کتاب می‌آید (ر : ۳۸) .

(٤) بمبڼ : به فتحهٔ اول و سکون دوم و فتحهٔ سوم ، پیشوای روحانی هنود .

(۵) دریځ : هم درص ۳٦متن و هم درینجا که کلمهٔ دریځ آمده ، محشی بالای آن نوشته

یا پرچم های ظفر خود را در هند نصب : ویا سرهای خودرادرآن کارخواهند گذاشت
یا بتکده های بت پرستان را ویران : یا کشور ها را بخون گلگون خواهند کرد
ای شهاب الدین ! روشن باش ! ونامت همواره برمنا برمساجد مذکور باد!
تاکه به شمشیر تواطراف هند روشن گردد و بتکده ها را از دنیا گم گردانی !
ای‌خداوند! مددگارتو پروردگار بزرگ باد ما مددگار توئیم ، تا که زنده ایم !

## «۹» ذکر زبدة الفصحاء ابو محمد هاشم
## ابن زيدالسروانی البستی رحمة‌الله علیه

شیخ کته رحمة‌الله علیه در«لرغونی پښتانه» چنین حکایت کند : که **ابومحمدهاشم** در **سروان هلمند** بسال ( ۲۲۳ ) هجری قدسی‌زاد ، و دربست ازعلماء وفصحاء ، درس خواند و بعد از آن رفت ، و در **عراق** سالهای متمادی از ائمهٔ بزرگ سماع کرد ، و با **ابن‌خلاد** که مشهور بود به **ابی‌العینا** در بغداد عمرها گذرانید ، و ازو بلاغت عربی و اشعارآنرا خواند ، وبسال (۲۹٤) هجری قدسی از عراق پس گشت ، و سه سال بعدتر

---

(٦) نمزدك : محشی بالای آن ترجمهٔ مسجد نوشته ، شرح و تحقیق آن را در آخر کتاب بخوانید (ر:۳۹) .

(۷) نست : ظاهراً بمعنی همان نیست پارسی‌است ، ولی درپښتواین‌کلمه درصورت مثبت سته وددرصورت منفی نسته اکنون مستعمل است ، شاید نست مخفف نسته باشد ، و معنی آن نابود ومعدوم وفانی شده ، است .

(۸) زېرمه : به یای مجهول و سکون سوم و زورکی چهارم سفارش و حفاظت و حمایت‌است .

(۹) یونه . مزیدعلیه‌یو (هستیم) است ، واین (نه) یا (نا) ترنماً دراشعارپشتو در اواخر افعال ملحق میگردد .

(۱۰) ر : ۷ .

(۱۱) سروان : همین ساروان کلای موجوده ، مرکزحکومتی زمینداوراست (ر:٤٠)

(۱۲) څرګند : بمعنی آشکارا و معروف .

(۱۳) ر : ٤۱ .

په بست کښې وفات سو ، نقل کا : چه ابومحمد په عربي او فارسي او پښتو شعرونه ويل ، او هغه وقت چه د ده استاد ابن‌خلاد په‌ستر گو ړوند سو ، نو ده به‌ئې خدمت‌کا ، او د هغه څخه به‌ئې خواږه شعرونه ، په ادب کښې د عربو اوريدله . ابومحمد له عربي څخه په پښتو د خپل استاد ، ډير شعرونه هم رااړولي دي .

ابن‌خلاد چه يو ظريف او اديب سړی ؤ ، پـه يوه شعر ئې درهم ستايلی دئ ، او ابومحمد هغه شعر داسې په پښتو رااړولی دئ [۲۵] :

## شعر

ژبه هم ښه وينا کاندي چه ئې وينه (۱) د خاوند پـه لاس کښې زر او درهمونه

ژبور (۲) ورله ورڅي وينا ئې اروي د درهم خاوندان تل وي په وياړونه (۳)

که درهم ئې لځنی ورك سو ، سي نتلی (٤) پر نړۍ ئې وي په خړو (٥) پېژندونه (٦)

که بډای سونی (۷) وبولي (۸) خلق وائي دا وينا ده ربنتاينه (۹) له ربنتونه (۱۰)

کـه بـې وزلی و وايـي ربنتـيا خبره نور و وايي دا خو سونی دی تېرونه (۱۱)

هو درهم ښندي هرچا له لويه برخه د درهم د خـاوند هرڅای پرتمونه

درهم ژبه ده که څوك ژبور کېږي ده وسله (۱۲) که څوك په کاندي قتالونه

نقل‌کا : چه ابومحمد په پښتو يو کتاب کښلی ؤ ، چه په هغه کښې (۱۳) د عربي د اشعارو فصاحت او بلاغت بيان کړی ؤ ، او نوم ئې ؤ « **د سالو وږمه** » (١٤) .

---

(۱) وينه : مزيد عليه (وي) است بمعنی باشد ، و (نه) برای ترنم در اواخر اشعار ملحق ميشود .

(۲) ژبور : بمعنی زباندار و لسان‌دان و سخنور است ، چه ژبـه (زبان) و(ور)از ادات ملکيت است .

(۳) وياړونه : جمع وياړ است ، بمعنی افتخار ، حـاشيهٔ (۱۱) ص ۳۳ خوانده شود .

(٤) نتلی : په زورکی اول و دوم وسوم ، بمعنی زار وزبون وافسرده است .

(٥) خړ : په زورکی اول بمعنی خاکی است . و مجازاً ساده را هم گويند ، و درينجا از مورد استعمال ميتوان دريافت ، که خړو بمعنی بديها و زشتيهاست ، و شايد اين معنی را در قديم داشت .

(٦) پېژندون : بمعنی معرفی است .

(۷) سونی : بـه ضمهٔ اول و واو معروف و کسرهٔ مـاقبل آخر و يای معروف بمعنی

در بست وفات یافت · نقل کنند : که ابومحمد در عربی وپارسی وپښتو شعر میگفت ، وهمان وقتیکه استادش ابن‌خلاد کور شد ، خدمت وی همیکرد ، واشعار شیرینی را در ادب عرب از وی سماع میکرد ، ابومحمد بسی از اشعار استاد خود را از عربی به پښتوآورده ·

ابن‌خلاد که شخص ظریف وادیبی بود ، دریك شعردرهم را ستوده است، وابومحمد آن شعر را چنین به پښتو ترجمه کرده :

## شعر

زبان‌هم خوب سخن میگوید، درصورتیکه : در دست صاحب آن زر و دراهم باشد
سخنوران‌پیش‌وی‌می‌آیند،وسخنش‌می‌شنوند صاحبان پول همواره مفتخر میباشند
اگرپول‌ازدست‌شان‌برود، ماتمزده میگردند و در دنیا به بدی ها معرفی میشوند
اگر متمولی‌دروغ بگوید ، مردم میگویند این سخن راستی است از طرف راستگوئی
و اگر بیچارهٔ سخن راست بگوید : دیگران‌میگویند: که‌دروغ وتعدی‌محض‌است
بلی! درهم بهر کس نصیب وافری می‌بخشد و صاحب درهم بهرجای با شکوه است
درهم‌زبان است ، اگر کسی سخنورمی‌شود سلاح است ، اگر کسی میخواهد پیکار کند

نقل کنند : که ابومحمد در پښتو کتابی نوشته بود ، که درآن فصاحت وبلاغت اشعار عرب را بیان کرده بود ، ونام آن بود · «**دسالووږمه**» یعنی «**نسیم ریگستان**» ·

---

(۸) وبولی : مضارع است ، از مصدر بلل بمعنی یادکردن و خواستن و گفتن ، ولی اکنون در قندهـار بـاسونې افعال مصدر ویشتل ( رمی ) مستعمل است ، مثلا سونې ولی یعنی(دروغ میگوید) ·

(۹) رښتیاینه : راستی ·

(۱۰) رښتون : ازریشهٔ رښتیا ، بمعنی راستگوی وصادق ، اکنون کم مستعمل است ·

(۱۱) تېرونه : صورت جمع تېرون است بمعنی تجاوز و از خود گذشتن ·

(۱۲) وسله : به فتحهٔ اول وسکون دوم ، اسلحه ·

(۱۳) کې : به یای مجهول ، مخفف ( کی‌ئې ) است ، که حرف اول از ادات ظرفیت و دوم ضمیر غایب است ·

(١٤) دسالووږمه : سال بمعنی سرمه ریگ است ( حـاشیهٔ ۷ ص٥٦رابخوانید ) ووږمه

## «۱۰» ذکر د عارف رباني برهان السالکین شیخ تیمن

## رحمةالله علیه

زما پلار قدس‌الله سره لـه کتابه د « **بستان الاولیاء** » چه **شیخ المشایخ بستان** بړیځ کنبلی دئ (۱) په کال (۹۵٦) سنه هجري قدسی(۲) داسې نقل کا : چه **شیخ تیمن** د **شیخ کاکړ** علیه‌الرحمه زوی ؤ ، ځکه چه دی د غور بری خوا (۳) ته ولاړ ، او هلته میشت سو ، نوخلق ئې اولاد اوس په **کاکړ** وکې [۲٦] نه شمېري ، خو په اصل دوی د کاکړ د اولادی ، او تیمن رحمةالله علیه ، زاهد او عابد ، او ولي ؤ ・

نقل کا : چه **کاکړ بابا** ، لا ژوندی ؤ ، تیمن له غوره راغی ، او په ړوب کې د کاکړبابا لیدنه(٤) ئې وکړه ، بیا ولاړ ، او په **کجران**(٥) کې و او سېد ، او د **علاءالدین حسین سام**(٦)په زمانه کې وفات سو، د تیمن‌بابا دغه شعرونه زما پلار له « بستان‌الاولیاء» شخه نقل کول او ما لهده واورېدل :

**شعر**

گهیځ رڼا د لمر خپره سوه      زما پر کور د ویرناره سوه
د بېلتون ورځ توره تیاره سوه
ړغ سو ناڅاپه (۷) چه بېلتون راغی

---

(۱) در (ص ٦٤ شرح حال شیخ بستان) دیده شود ・

(۲) تاریخ تألیف بستان‌الاولیاء درینجا (۹۵٦) ﻫ ، و در شرح حال خود شیخ بستان (ص ٦٦) تاریخ آن (۹۹۸) ﻫ نوشته شده ، و این اختلاف سنین شاید ناشی از سهو نساخ و نویسندگان باشد چون مخزن افغانی نعمت‌الله (ص ۲۵۰ قلمی ) تاریخ وفات این شیخ را روز جمعه ۱۱ ربیع‌الثانی سنه (۱۰۰۲) ﻫ نوشته ، بنابران باید گفت که (۹۹۸ ﻫ) نزدیك به یقین است ، ودر(۹۵٦ ﻫ) باید شیخ ما جوان یا طفل باشد ، وطوریکه نعمت‌الله اشارت میکند چون در ایام جوانی سیاحت میکرده و به هند میرفته است، لهذا فرصت تألیف نباید داشته باشد ・

(۳) برهخوا : یعنی طرف بلند وسرزمین بلند ، مردم اراضی پست جلگه های قندهار

## «۱۰» ذکر عارف ربانی ، برهان السالکین شیخ تیمن رحمةالله علیه

پدرم قدس‌الله سره ازکتاب « **بستان الاولیاء** » کـه **شیخ المشایخ بستان** بړیڅ بسال**۹۵۶** ه نوشته است ، چنین نقل کند : که **شیخ تیمن** پسر**شیخ کاکړ** علیه‌الرحمه بود، چون وی به کوهستان غور رفت ، ودرآنجا ساکن شد ، بنابران مردم ، اکنون اولادش را در**کاکړ** نمی‌شمارند ، ولی اصلاآنها ازاولاد کاکړند ، و تیمن رحمةالله علیه ، شخص زاهد و عابد وولی بود .

نقل کنند . که **باباکاکړ** ، هنوز زنده بود ، که تیمن ازغورآمد ودرړوب باباکاکړ را دید و باز رفت ، و در**کجران** سکونت کرد ، و درعصر **علاءالدین حسین سام** وفات یافت، این اشعارباباتیمن را پدرم از « بستان‌الاولیاء » نقل میفرمود ، و من ازوشنیدم :

**شعر**

سحرگه که شعاع آفتاب پراگنده شد　　در خـانهٔ من نفیر غم برخـاست
روز فراق ، بر من تاریك گردید
ناگهان ندا دادند ، که فراق آمد

---

(٤) لیدنه : از مصدر لیدل (دیدن) بمعنی ملاقات ودیدار است .

(٥) کجران : همان کجوران‌تاریخی‌است که درحوادث دورهٔ غوریها زیادترذکرمیگردد، اکنون هم کجران گویند ، و اراضی مرتفعی‌است بلند تر ازهشت هزارفت که درشمال شرقی زمین داور و جنوب غور ( بمعنی اعم تاریخی) افتاده ، وسکنهٔ آنراکجرانی گویند . ضبط تاریخی این‌کلمه کجوران‌است ، چنانچه در طبقات ناصری مکرراً بنظر می‌آید ، وازمراکز عمدهٔ مدنیت وسلطنت غوری بود. البیرونی گوید : کجران‌للغوربین جبالهم (ص۲۸ منتخبات قانون مسعودی طبع دهلی) زکی ولیدی توغان محشی وطابع ومصحح کتاب گوید : که اصل این نام در مراجع ومنابع جغرافی دیگر نیامده .

(٦) اصل شام ولی سهو کاتب است .

(۷) ناڅاپه : ناگاه و دفعتاً .

## بیت

چه آسمان ئې مخ پټ کړی په سحاب وُ — خدای وماوته ښکاره کړ هغه نمر بیا
چه رقیب راته ترلئ په زنځیر وُ — خپل حبیب راباندې پرانت هغه وربیا
په وصال ئې منت بار اوسه رحمانه ! — په صدف کې دخل نشته دگوهر بیا

نقل کا : چه د خدای په قدرت ، دغه ورځ پر آسمان اوريځ هم وه ، چه حاجی میر مرحوم دا بیت ولوست ، هغه گړی‌دلمر ښکاره سو، اوريځ ئې له مخه هیسته (۱) سوه خلقو هم دغه یو الهی مدد و گاڼه ، او بیا نو جنت مکان حاجی میر خان خلقو ته وویل : دا دئ د خدای تعالی‌مهر اولطف هم زموږ ملگری دئ ، اوس نووقت‌دئ ، چه توری له تېکیو(۲) وکاږو ، او ځانونه له دښمنه وژغورو . هغه وُ چه په ۲۹ د ذیقعدة الحرام سنه ( ۱۱۱۹ ) هجري اولس ټول سول ، او د جنت مکان حاجی میر په مدد په قندهار ورننوتل ، اودښمنان ئې ټول مړه کړل. اوس به نو کاتب‌الحروف غفرالله ذنوبه د عبدالرحمان باباشعرونه رانقل کا:

## غزل

زه دا هسې دېوانه ومجنون چاکړم — له رواجه له رسومه بیرون چاکړم[٤٧]
نه‌پوهېږم چه‌دا چارې په ما څوك كا — لېونی د خپل نگاه په افسون چاکړم ؟
کومې‌سترگې، کوم‌باڼه، کومه‌غمزه‌ده — ډوب‌شهیدغندې په‌خاك و په‌خون چاکړم؟
توان توفیق خو د فتنو را څخه نه‌وُ — په فتنو د تورو سترگو مفتون چاکړم؟

« رحمان » هېڅ له خپله ځانه خبر نه‌وم
چه دا هسې رنگ زبون او محزون چاکړم !

## «۲۱» ذکر د شیخ الصالح محمد صالح

### رحمة‌الله علیه

هسې وایې کاتب د دې کتاب محمد : چه **ملا الله یارالکوزی** په **«تحفهٔ صالح»**

(۱) هیسته : تاکنون هم بمعنی دور شده . . داشته شده‌است .

### بیت

همان آفتابیکه فلك رویش‌را بسحاب پوشانیده بود ، خدا باز بمن نمود
همان دربیکه رقیب آنرا به زنجیر محکم بسته بود، حبیب‌من آنراباز برویم کشود
ای رحمان! دروصل‌وی ممنون باش ! گوهر دو باره بصدف دخلی ندارد(۳)

نقل کنند ، که بقدرت خدا ، در همان روز بر آسمان ابر هم بود ، چون حاجی میر مرحوم این بیت‌را خواند، هماندم آفتاب آشکارا شد و ابر از رویش دور گردید ، مردم آنرا هم مدد الهی پنداشتند ، و بعد ازان حاجی میرخان جنت مکان بمردم گفت : اینك مهر و لطف خداوندی هم رفیق ماست ، و حالا وقت است ، که شمشیرها از نیام بکشیم و خویشتن را ازدشمن نجات دهیم . همان بود که به۲۹ذیقعدةالحرام سنه (۱۱۱۹) هجری ملت جمع گردید ، و بمدد حاجی‌میرجنت مکان ، به قندهار داخل شدند ودشمنان را همه بکشتند . حالا کاتب‌الحروف غفرالله ذنوبه چند شعر عبدالرحمان بابا را نقل میکند :

### غزل

که مرا چنین دیوانه و مجنون ساخت و که از رواج و رسم مرا بیرون کرد ؟
نمیدانم کیست که‌مرا بچنین کارهاوادارمیسازد و کیست که مرابافسون‌نگاه دیوانه ساخت؟
کدام چشم و کدام‌مژگان‌و کدام غمزه‌است! که مرا مانند شهیدبخاك و خون انداخت؟
در مقابل فتنه‌ها ، نه‌توانی و نه‌توفیقی‌داشتم به فتنه‌های چشمان سیاه که مرامفتون کرد؟
هیچ ازخویشتن خبری ندارم ای «رحمان» !
که اینچنین مرا زبون و محزون ساخت ؟

## «۲۱» ذکر شیخ الصالح محمد صالح

## رحمة‌الله علیه

چنین گوید کاتب این کتاب محمد : که **ملا الله‌یار الکوزی** در **«تحفهٔ صالح»**

---

(۲) تپکی : غلاف و نیام شمشیر .
(۳) یعنی گوهر مقصود که بچنگ آمده ، از دست باز نمیرود .

کې کښلی دئ، چه **شیخ محمدصالح** په قوم **الکوزی** ؤ، په **جلدك**(۱) کې اوسېدئ، او عابد او عالم ؤ چه وقت ئې په تدریس تېراوه ، اود خلق‌الله ارشاد ئې کا ·

نقل‌دئ : چه **شاه بیگ‌خان** د قندهارصوبدار(۲) شیخ محمدصالح وغوښت، چه کابل ته ولاړ سي‌اوهلته خلقو ته فیض ورکړي‌او په تدریس‌د علوموطالبانو ته هدایت وکا· شیخ محمد صالح ورته وکښل «چه ما له، طمع د عزت نسته ، او په دنیا پسې تگ نه غواړم زماداسې مقصد دئ چه دنیا ماته راسي، نه چه زه ولاړ سم دنیا پسې ، که زما عزت غواړې ما پرېږده، او په دنیا پسې مې مه مسافر کوه»· چه دغه خط ورسېدئ شاه بیگ خان وویل : «زما هم ستا عزت مقصود ؤ ، نه بې عزتی » ·

هسې وایي محمد [٤٨] چه ملا الله‌یار ، د خپل شیخ په‌نامه وکینښ کتاب چه« تحفهٔ صالح» ئې نوم ؤ · په هغه کتاب کې د خپل شیخ علیه‌الرحمه احوال اوخبرې وکښلې ، او د ده اشعار ئې پکښې ضبط کړل ، چه له هغو څخه دا غزل دئ ، چه شاه بیگ ته ئې کښلی:

## غزل لشیخ محمد صالح

د لیلی دمینې فیض هرسبا وړم　بیهوده منت به ولی د نور چا وړم ؟
چه اشنای د شپې ناځاپه په‌لاس کښېوت　روښان زړه‌په کوگل پټ لمر په‌سماوړم
پردنیا که تجارت څوك د دنیا کې (۳)　زه د زړه په‌بازار بارد عشق‌سودا وړم
د لیلی‌لیدل دې رب په بها، نه کې(٤)　خزانه که د دې کل جهان په‌شا وړم
که‌پرتخت مې‌دسلیمان سپور کړې‌سرېه!　عاقبت خاورو ته ښه عمل پیشوا وړم

بېله عشقه خوشحالی پر ما حرامه
زه«صالح» که‌په‌خوله‌خوښ په‌زړه ژړاوړم

(۱) جلدك : تخمیناً ۷۰میل دور، برشهراه کابل بسمت شمال شرق قندهارافتاده ومسکن اقوام الکوزی است ·

(۲) شاه بیگ خان صوبدار قندهار غالباً همان شخص کابلی است که در اوایل عصر

نگاشته است، کـه **شیخ محمد صالح** از قوم **الکوزی** و در **جلدك** میزیست، عابد و عالمی بود که وقت خود را به تدریس میگذرانید، و ارشاد خلق‌الله میکرد.

نقلست: که صوبـدار قندهار **شاه بیگ خان**، شیخ محمد صـالح را خواست، کـه بکابل برود، و درانجا بمردم فیض دهد، و به تدریس علوم، طالبان را هـدایت کند. شیخ محمد صالح به وی نوشت: «که مرا طمع عـزت نیست، و در پی‌دنیا رفتن نمی‌خواهم، من عزم دارم، که دنیا بمن‌آید، نه که من در پی دنیا بروم، اگر عزت مرا می‌خواهی مرا بمان، و در پی دنیا مسافرم مساز». چون این مکتوب به شاه بیگ‌خان رسید گفت: «مقصد من هم عزت تو بود، نه بی عزتی».

چنین گوید محمد: که ملاالله یار بنام شیـخ خویش، کتابی نوشت، کـه «تحفهٔ صالح» نامداشت و دران کتاب احوال و اقوال شیخ خود علیه‌الرحمه را نگاشت، و اشعار وی را دران ضبط کرد که ازانجمله این غزل است، که به شاه بیگ خان نگاشته:


والقلم وما یسطرون
دسیف الدین لودین کتاب‌تون
کتاب پرلیسپ شمیره

## غزل شیخ محمد صالح

چون فیض عشق محبوب‌ه‌را هرسحر گه می برم　　　منت دیگـران را چرا بیهـوده بکشم؟
چون‌شبا نه آشنایم نا گهانی بدست آمد. دل روشن‌خوددرامانند آفتابیکه درسماپنهان‌است‌درسینه‌میبرم
اگر کسی دردنیا تجارت دنیا می کند　　　من‌متاع عشق را به بازار دل‌عرضه‌میدارم
خدامعادل‌قیمت‌دیدارمحبوبه‌نگردانند:　　　اگر خزاین تمام جهـان را بمن دهند
ای‌مرد! اگرمرا بر تخت‌**سلیمان** بنشانی　　　عاقبت کردارخوب‌را بخاك‌توشه‌خواهم‌برد

بدون عشق، خوشی و مسرت بر من حرامست
من «صالح» اگرظاهراً خوشم، دلم میگرید

---

جهانگیر بعد از (۱۰۱۴ ھ) صوبدارقندهار بود، برای تفصیل موضوع تعالیـق آخر کتاب دیده شود (ر: ۵۰).　　(۳) کي: صورتی است از افعال کړي، کوي، کا، بمعنی میکند، وهر چهار صحیح و در محاورهٔ عمومی داخل است.

## غزل، و له ایضاً رحمه الله

چه په زړه ئې غشی څرخ(۱) سي د چشمانو — روغ به نه سي په دارو د طبیبانو
چه نورتن له رنځه خلاص په زړه رنځوروي — دادزړه دارو جوړ نکړه حکیمانو[۴۹]
مګر الله چه حبیب دئ هم طبیب دئ — کار سازی کا د خوارانو رنځورانو
هېڅ اثر رابانـدې نکانـدي عالمه! — ښه ویل در و ګوهر دناصحانو
نصیحت زړه غواړي، زړه نسته کوګل کې — زړه مې وړی په منګولو خوبرویانو

که «صالح» غندې د زړه په وینو پایي
نور دولت پر د نیا نسته طالبانو

## «۲۲» ذکر د مقبول ربانی علی سرور قدس سره الولی

په «تحفهٔ صالح» کې هسې راوړی: چه **شیخ علی سرور شاهو خېل لودی** ؤ، چه دهند ستان په ملتان کې دېره ؤ (۲) او خاوند ؤ د کراماتو او خوارقو چه خلقو به هر کله ځني لیدل.

په «**مخزن افغانی** کې هم نعمت الله هسې وایي: چه شېخ لوی لوی کرامات ښکاره کړل او خلق په وګروهېدل (۳). په «**تحفهٔ صالح**» کې راوړی چه شیخ به‌خپلو مریدانو ته هدایت کا او وعظونه، او د سوالو ځوابونه به ئې ویل، او د تصوف مشکلات به ئې حل کول (٤).

یوه ورځ سوال ځني و سوچه: «پس ترا هر لحظه مرګی رجعتی است ☆ مصطفی فرمود دنیا ساعتی است» څه مقصد لري؟ ز موږ مرګ و رجعت که دایم او مستمر دی؟ او که دا مرګ و رجعت دایم او مستمر وي، نو به حیات بعد الممات متعدد سي، او د تناسخیا نو عقیده به سي! هغه عارف رباني هسې جواب ورکا[۵۰] چه ذات ما سوا دئ له بدنه، ذات دائماً ثابت دئ او بدن متحلل دئ، هسې چه وایي: انت انت لا بیدنک، فان بدنک فی التحلل

(۱) څرخ: درینجا څرخ کېدل بمعنی فرورفتن و درون شدن تیراست در دل، واین اصطلاح دراشعار متوسطین زیاد بنظر می‌آید، عبدالقادر خان ګوید:

خوب ئې باندې نشي لټ په لټ و بله اوړي — ګل ئې د نهالی په نازک بدن څرخېږي

## غزل ، و له ایضاً رحمه الله

کسیکه تیر نگاه در دلش فرو رود　　به دا روی طبیبان صحت نمی یابد
کسیکه بتن صحیح ، ود لش ر نجور باشد　　برای چنین دل حکماء دارونساخته اند :
مگر خدائی که هم حبیب و هم طبیب است　　وهمواره کارسازی بیچارگان‌ورنجورانرامیکند
ای مردم ! بر من هیچ اثر نمی کند :　　گفتارخوب ناصحان که مانند دروگوهراست
زیرا، نصیحت‌دل بکاردارد،‌ودرسینه‌ام‌دل نیست　　و دلم را خوبرویان به یغما برده‌اند !
اگرمانند «صالح» از خون دل قوت بگیرید
در دنیا دولتی بهتر از ین نیست !

## «۲۲» ذکر مقبول ربانی علی سرور قدس سره الولی

در « تحفهٔ صالح » چنین می‌آورد : که **شیخ علی‌سرورلودی شاهوخیل بود**، که در هندوستان درملتان سکونت داشت ، و دارای کرامات وخوارقی بود ، که مردم هر وقت ازوی میدیدند .

نعمت‌الله هم در « مخزن افغانی » چنین گوید : که شیخ کرامات بزرگی را ظاهر کرد ، و مردم به وی گرویدند . در تحفهٔ صالح می آورد : که شیخ همواره به مریدان خود هدایت و وعظ ها میفرمود ، و سؤال های آنها را جواب ها میداد ، ومشکلات تصوف را حل میکرد .

روزی از وی سؤال شدکه : « پس‌ترا هرلحظه مرگی رجعتی است ☆ مصطفی فرمود دنیا ساعتی است » چه مقصد دارد ؟ مرگ و رجعت چطور دایم و مستمر است ؟ واگر این مرگ و رجعت دایم ومستمر باشد ، باید حیات بعدالممات متعدد گردد ، و عقیدهٔ تناسخیان خواهد شد ! آن عارف ربانی چنین جواب داد : که ذات ما سواء بدنست ، ذات دایماً ثابت ، وبدن‌متحلل است .طوریکه گوید : انت‌انت‌لا ببدنك ، فان بدنك فی‌التحلل

---

واکنون بهمین معنی و درچنین موقع به محاورهٔ قندهار جگیدل گوئیم یعنی خلیدن و نصب شدن و فرو رفتن .

(۲) دیره ؤ ، یعنی ساکن بود .

(۳) حاشیهٔ ۲ ص ۷۰ رابخوانید .

(٤) ر : ۵۱ .

ولیس عندك منه خبر فانت و راء هذه‌الاشیاء (١) دغه مرگ ورجعت بدنی دئ نه ذاتی او هرکله چه تحلل‌وموند سابقه ذراتو ، نوئې پرځای درېږي لاحقه ذرات ، او همدغه تجدد دئ چه د دنیا عدم‌تحقق ثابتوي. اوهغه چه‌مصطفی‌علیه‌السلام وویل: «الدنیاساعة رشتیا کوي .

په « تحفهٔ صالح » کې دعارفـربانې علی سرور لودي ، اشعار دی چه دا غزل ځنی را اخلم :

## غزل لعارف الربانی

محبت پیاله مې نوش کړه په مجاز کې ... د حق نور وینم په سترگود ایاز کې (٢)

درست وطن را ته در یاب شو بې دیدنه ... دید مې نشي مگر خدای مې سبب ساز کي

که زه مړشم هم له گوره کړم سر پو رته ... ناگهان چه مې دلبر پورته آواز کي

که مې سر غوڅ د رقیب په تېره تیغ سي ... هم به ځم که دلبر غوښت په مهر و ناز کي

زه و یـار مداماً ناست و یو له بله ... پر غماز دی باری کاښی دغم ساز کي

گران ، بیلتون به دهغو مینو وینه (٣) ... چه تل ناست وي په خلوت کې‌سره ناز کي

ا ی«سروره» ! غمـازان شوه بې‌حسـا به
پاك‌الله دی (٤)صورت‌تش بې‌مغزه پیاز کي [٥١]

---

(١) درینجا بیت پارسی ازمثنوی مولانای روم (رحمة الله علیه) است ، و جمل عربی از شیخ الاشراق شهاب الدین یحیی بن حبش سهر وردی الشهیر به مقتول است ( متوفی ٥٨٧ ه ) که در کتاب هیاکل النور هیکل دوم ص ١٢ طبع مصر بصورت مفصل موجود است

ولیس عندك منه خبر فانت و راء هذالاشیاء ・ این‌مرگ ورجعت بدنی است نه ذاتی ، ووقتی که ذرات سابقه تحلل میکند ، بجای آن ذرات لاحقه موقع میگیرد ، وهمین تجدد است ، که عدم تحقق دنیارا ثابت میسازد ・وآنچه **مصطفی** علیه‌السلام فرمود :«الدنیا ساعة» را مدلل میگرداند ・

در «تحفهٔ صالح» عارف ربانی‌علی‌سرور لودی را اشعاریست ، که این غزل‌را ازآنجا اقتباس میکنم :

## غزل‌لعارف ربانی

جام محبت را در عالم مجاز نوشیدم نورحق را در چشم **ایاز** می بینم
بدون دیدارش ، همه عالم برای من‌دریای‌غم‌است وی را نمی بینم ، مگر خدا سبب گردد
وقتیکه بمیرم ، هم ازخاك سرخواهم برداشت : اگر دلبرم ناگهان بر خاکم صدا کند
اگر رقیب سرم را به تیغ تیز ببرد چون‌دلبرم‌بمهرونازبخواهدپیش‌وی‌خواهمرفت
من ویارهمواره باهم وصل بودیم غماز بسنگ الم مرجوم گردد (که ماراازهمدورانداخت )
جدائی دوستانی از هم مشکل خواهد بود : که همواره با هم بمهرونازدرخلوت باشند

ای«سرور» ! غمازان‌زیاد و بی‌حساب شدند
خدای پاك! آنها را مانند بیاز بی مغز بسازد!

(۲) درین غزل بجزمطلع تا آخر کي مخفف کړي است ، نه ( کې ) ظرفی ・
(۳) وینه مزید علیه (وي) است بمعنی باشند ・
(٤) دی مخفف دی ئې‌است・

# دوهمه خزانه

## په بيان د هغو شاعرانو چه زموږ معاصرين دي غفرالله لهم

### «۲۳» ذکرد آشنای بزم راز ملاباز توخی

**ملاباز توخی** په اتغر(۱) کې اوسي ، او په اصناف د اشعارو کې استاد دئ ، غزل او رباعي وايي ، او د شاعرانو انباز دئ او زما چه محمد هوتك يم همراز دئ .
کله چه قندهارته راسي، زموږ مجلس په تود وي اوياران د ده له لطافته دطبع ممنون.
ملابازمبادی د علومو لوستی، او په فقه شريف کې تيار(۲) دئ ،کله منطق اوحکمت لولي ، او خپلو شاگردانو ته ئې درس ورکوي ، دمخه په ابتداء د ځوانۍ تللی وُ ، او په هندوستان ئې له استادانو لوست کړی .

#### لطيفه

کله له کلاته ملاباز راغئ ، او په قندهار کې زما مېلمه سو ، دستي ما چرگ حلال کا ، او طعام مې تيار ، چه دسترخوان راغئ ، ملاباز هسې شعر ووايه :

#### شعر

| | |
|---|---|
| پر کورو ئې ر مې گرزي | د باز برخه يو چيچی دئ |
| د باز ښکاروي د غرڅنو(۳) | اوس مې بس ها(٤) سپينکی ورى دئ |

ماژرهغه سپين وری هم حلال کا، او دميلمه ميلمستيا ته مې پوخ کا دا بدله دده له بدلوڅخه ده: [۵۲]

(۱) اتغر : حاشيه ۲ ص ۸ را بخوانيد .
(۲) تيار : وقتيکه در مورد علم و کتاب بيايد ، مقصد ازان ماهر بودنست دران علم و اين اصطلاح تاکنون موجود است .

# خزانهٔ دوم

## دربیان شعرائیکه معاصرین ما اند غفرالله لهم

## « ۲۳ » ذکر آشنای بزم راز ملاباز توخی

**ملاباز توخی** در اتغرسکونت دارد ، و دراصناف سخن استاد است ، غزل ورباعی میگوید و انباز شعراست ، و با من که محمد هوتکم همراز ·

وقتیکه بقندهار بیاید،بزم‌مارا گرم میسازد ، ویاران از لطافت طبعش ممنون‌میشوند·

ملا باز مبادی علوم را خوانده ، و در فقه شریف استاد است ، گاهی منطق وحکمت می‌خواند ، و به شاگردان درس میدهد ، پیشتر در ابتدای جوانی رفته بود ، و در هندوستان از اساتید درس فرا گرفته ·

### لطیفه

وقتی ملاباز از کلات آمد ، و در قندهار مهمان من شد ، فوراً خروس را ذبح کردم و طعام مهیا ساختم ، چون سفره رسید ، ملاباز چنین شعر گفت :

### شعر

در خانه رمه ها داشته می باشد ولی حصهٔ باز یك چوچه است !

اگرچه بازهمواره بزکوهی‌را شکار میکند اما اکنون‌همان بره گك سپیدم‌کافی‌است

من هم‌علی‌العجاله همان بره را ذبح کردم ، ودرمهمانی مهمان پختم:این غزل ازسخنان‌اوست:

---

(۳) غرخنی : به فتحهٔ اول و سکون دوم و زورکی سوم و فتحهٔ چهارم ، بزکوهی و عموماً حیوانات شکاری کوهی ·

(٤) ها : مخفف هغه اشارهٔ بعید است و تاکنون مستعمل است· مثلا: هاسړی راځي ( آن آدم می‌آید )·

بدله

راسه پرځنګ، راسه لیلی، ته مې نږدې سه له دل
یمه زخمی چه مې و نه نجتی (۱) په خوږ زړه منګول
راسه پرځنګ، راسه لیلی ولی له ما کړې بېلتون؟
داستا له‌غمه مې زړګی دئ په سرو وینو ګلګون
که هرځوتښتم نه‌پرېږدې مې ستا د عشق شواخون
زه نه خلاصېږم له غمازه په لېږدنه (۲) په تلل
☆ ☆ ☆
راسه پرځنګ،راسه لیلی، چه‌دې په زړه کم ملهم
دا ستا په عشق کې مې ترشا کا د دنیا و اړه غم
حساب کتاب مجلس مې واړه کا ستا مینې بر هم
لار ورتــه نسته چــه دې ګښېنوم درون په کوګل
☆ ☆ ☆
راسه‌پرځنګ،راسه‌لیلی،چه دې‌په‌زړه کم پورې(۳)
کجل‌درواخله د واړې ستر ګې به دې زه کم تورې
لیدل به ستا د مخ کوم ، اندېښنې نه‌کم نورې
په کــارمې‌نه دی ستا بی مخه د جنت زېړی ګــل
☆ ☆ ☆
راسه پرځنګ،راسه‌لیلی: چه سره و کړو خواله(٤)
پرتا مین یم بې له تا مې نسته هېڅ اندېښنه
زه دغرو«باز» وم ، تا بندي کړمه قفس کې پرځه ؟
یوو ارمې خلاص که ، چه بیا زده کړم د وزرخپرول

## « ۲٤ » ذکر د افضل المعاصرین ظل‌الله فی العالمین شاه حسین لازال ظلال سلطنة علی مفارق المسلمین

پادشاه جمجاه ظل‌الله شاه حسین ښالم خېل هوتك ، او د مغفور جنت مکــان حاجی میر خان زوی دئ، چه اوس په ځوانی کې پادشاهــې کا ، او ښتا نه ئې په سیوری آرام دي ، پادشاه عــالم پنـاه په ۲۳ د ربیع‌الاول په ( ۱۱۱٤ ) سنه هجـری په سیوری کــې دکــلات [ ۵۳ ] پیدا سو ، هغه وقت چــه حاجــی میر خــان د **بیت الله**

(۱) نجتل : بسکون اول و کسرهٔ دوم وزور کی سوم‌نصب کردن.
(۲) لېږدنه : سفر و کوچ

## بدله

په کنارم بیا ، ای محبوبه بیا ، بدلم نزدیك شو
افگارم ، هان ، کـه چنگل در دلم نخلانی !
به کنارم بیا ، ای محبوبه بیا ، چرا ازمن دوری میجوئی ؟
از غمت دلکم بخون گلگـونست
هر چند میگریزم ، ولی شبیخون عشقت مرا نمی‌ماند
واز دست غماز به کوچ وسفرهم رهائی ندارم
☆ ☆ ☆
به کنارم بیا ، ای محبوب ، که ترا مرهم دل سازم
در راه عشقت تمام کاروبار دنیا را ترك دادم
حساب وکتاب و بزم مرا محبت تـو برهم ساخـت
راهی ندارد ، ورنه ترا درون دل قرارمیدادم
☆ ☆ ☆
به کنارم بیا ، ای محبوبه ، کـه ترا بدل بچسپانم
سرمه بیار، که هر دو چشمت را بدان بیارایم
همواره بدیدارت مشغول،وازاندیشه‌های دیگر فارغ خواهم بود
گل‌های زردجنت، بدون طلعت زیبایت بکار ندارم
☆ ☆ ☆
بکنارم بیا ، ای محبوبه بیا ، که با هم همدردی کنیم
برتومفتونم ، و بدون تو دیگر اندیشهٔ ندارم
من « باز » کـوهسار بـودم ، چرا در قفسم کـردی ؟
با ری مرا رها کن ، که باز پرافشانی یاد بگیرم

## «۲٤» ذکر افضل المعاصرین ظل الله فی العالمین شاه حسین

## لازال ظلال سلطنة علی مفارق المسلمین

پادشاه جمجاه شاه‌حسین . بقوم بنالم‌خیل‌هوتك ، وپسر مغفور جنت مکان‌حاجی میرخان است که حالا درریعان شباب پادشاهست و پښتونها درسایهٔ‌وی آرامند ، پاشاه عالم پناه‌در ۲۳ربیع الاول سال(۱۱۱٤)هجری‌درسیوری کلات بدنیا آمد ، وقتیکه‌حاجی میرخان‌سفر بیت‌الله

(٤) خواله : به سکون اول ، درد دل با هم گفتن،با یکدیگر بطورهمدردی رازوانمودن.

او **اصفهان** سفر وکا ، پادشاه ظل‌الله کوچنی ؤ او له اعلم علماء **ملايارمحمد هوتك** څخه ئې درس و لوست ، اوتردوولسوکلو پورې د عمرئې د فقه او تفسير اومنطق او د بلاغت کتب و لوستل او په قندهار کې‌له پلاره ئې مصالح د امور زده کړل ، او چه جنت مکان حاجی **ميرخان** په ۲۸ د ذيحجة‌الحرام(۱۱۲۷)سنه هجري په قندهار کې وفات سو ، پادشاه ظل‌الله څورلس کلن ؤ او د خپل مشر ورور شاه محمود خان‌سره ؤ . **ميرعبدالعزيز** چه د حاجي ميرخان ورور ؤپسله مرگه د ورور په قندهار کې مشر سو ، خود اولس رعايت ئې کم‌کا ، څو چه په (۱۱۲۹) سنه هجري د شپې د **نارنج** له **قصر**(۱) له بامه خطا سو او را ولوېد مړ سو ، د خپل عم تر مرگ وروسته **مير محمود** په قندهار کې پادشاه سو(۲) او د سيستان او**کرمان** پرخوا ئې لښکر وکا په سنه (۱۱۳۵) هجري چه د اصفهان د ضبط دپاره ولاړ په قندهار کې (۳) خپل ورور پادشاه ظل‌الله شاه حسين پادشاه‌کا ، او د قندهار او فراه پادشاهي ئې تر غزنی ، شاه حسين ته ورکړله ، او د ټولو **غلجو** ملکانو اوخانانو او مشرانو شاه حسين پخپله پادشاهي و مانه اوخطبه او سکه ئې په نامه مبارك جاري‌سوه .

شاه حسين ادام‌الله دولته دلاور او متهور پادشاه دئ ، د رعايا په داد رسي(٤) او د داد خواهانوفرياد اوري ، د ظالمانولاس کوتاه دئ او رعيت آرام دی[٥٤] د پادشاه عالم پناه دربار کې تل علماء او صالحان لار لري افضل العلماء ملايار محمد هوتك چه د پادشاه استاد دئ لوی عالم دئ په فقه کې ئې کتاب «**مسايل ارکان خمسه**» کښلی دئ .

بل لوی عالم د دې عصر چه د پادشاه ظل‌الله تر ظل لاندې ژوند کا ،

---

(۱) قصر نارنج : در بين شهر قندهار کهنه واقع بود ، و قصر بلنديست که اکنون هم آثار آن درحالت ويرانی بنظرمی آيد . منظر آن درحالت‌موجوده‌درتصوير مقابل‌ديده‌شود .

و **اصفهان** کرد ، پادشاه ظل‌الله خورد بود ، و از اعلم علما **ملایارمحمد هوتك** درس خواند ، و تا دوازده سالگی عمر ، فقه ، و تفسیر و منطق و کتب بلاغت خواند ، و در قندهار از پدر خود مصالح امور آموخت . وقتیکه حاجی میر خان جنت مکان ، بتاریخ ٢٨ ذیحجةالحرام سنه (١١٢٧) هجری ، در قندهار وفات یافت . پادشاه ظل‌الله چهارده ساله ، و با برادر بزرگ خود شاه محمود خان می‌بود ، **میرعبدالعزیز** ، که برادر حاجی میرخان بود ، بعد از وفات برادر ، در قندهار حکمران گردید . ولی رعایت ملت را کمتر میکرد ، تاکه در سنهٔ(١١٢٩) هجری ، شبانه از **قصر نارنج** خطا خورده و افتاد و مرد ، بعد از مرگش‌عمش، **میر محمود** در قندهار پادشاه شد ، و بسوی سیستان و **کرمان** لشکر برد ، و در سنه (١١٣٥) هجری کــه برای ضبط اصفهان رفت ، در قندهار برادر خود پادشاه ظل‌الله شاه حسین را پادشاه ساخت ، و پادشاهی قندهار و فراه را تا غزنی به شاه حسین داد ، وتمام ملکان و خوانین و کلان شوندگان **غلجی** شاه حسین را به شاهی خویش قبول کردند و خطبه و سکه را بنام مبارکش جاری ساختند .

شاه حسین ادام‌الله دولته، پادشاه دلاور و متهوریست، و بداد رعایا میرسد ،وفریاد دادخواهان را می‌شنود ، دست ظالمین کوتاه ،و رعیت آرام‌اند ، در دربار پادشاه عالم ــ پناه همواره علماء و صلحاء راه دارند ، افضل‌العلماء ملایار محمد هوتك ، که استاد پادشاه است ، عالم بزرگی است ، در فقه کتاب « **مسایل ارکان خمسه** » را نگاشته است .

عالم بزرگ دیگر این عصر که در ظل پادشاه ظل الله حیات دارد ،

---

معاصر و ناظر وقایع بوده‌آنرا بصورت دیگرنوشته ، که قولش ثقه‌تر است ، بنابران دست شاه محمود را ازخون عم خویش‌پاك‌باید دانست،زیرا عبدالعزیزخودش‌ازبام قصرافتاده‌بود.

د قندهارد جامع امام **ملا محمد یونس توخي** دئ ، چه د **ملا محمد اکبر** فرزند دئ ، او د علومو تدریس کا ، او کتاب د « **جامع فرایض** » ئې کښلی دئ په پښتو .

او بل عالم جامع‌الکمال **ملا زعفران ترکی** دئ ، چه مدار المهام اوصدرالافاضل دئ ، او د پادشاه ظل‌الله کینږلاس دئ ، او د **محمد** چه دپادشاه زوی‌دئ استاد هم دئ ، ملا زعفران په حکمت اوریاضی او طب کې استاد دئ، او« **گلدستهٔ‌زعفرانی** » ئې په‌حکمت او طب کې کښلی ده ، داکتاب ماهم لیدلی دئ او مطالعه کړی .

پادشاه ظل‌الله شاه حسین په جنگ کې مړنی (۱) دئ ، او په نیولو د ممالکو کې گړندی، د غلجو طوایف تر غزنی‌پورې د ده پادشاهي مني ، او په **ابدالیو** کې تر سیستانه او هراته حکم‌کا . په سنه ( ۱۱۳۸ ) هجري شاه حسین لښکروکا ، او د **بهادرخان** په سالاری ئې د **شال** (۲) او ږوب ولایت فتح کا . او په‌کال (۱۱۳۹) سنه پخپله پادشاه ظل‌الله تر **دیره جاته** (۳) فتح کړل . اوتر**گومله** (٤) ئې ضبط کړل ، اوس پر دغو ټولو ملکو د ده سکه جاري ده او حکم ئې ساري .

پادشاه عالم پناه په **ارگ** کې د قندهار ، هغه قصر چه نارنج باله شي[٥٥] هلته په هفته یوه ورځ دربارکا په‌کتب خانه کې ، او په مجلس کې (٥) علماء جمع کېږي ، اوشعراء او فضلاء ټولوي . زه محمد هوتك‌کاتب د دې‌کتاب هم په دې مجلس کې یم ، او د پادشاه ظل‌الله اشعار او ابیات په قلم کاږم (٦) اوکتاب د دیوان ئې مـرتب سوی دئ ،کله په پښتو اشعار وایي ، اوکله فارسی ژبی ته هم میل‌کا . او استادالعلما ملایار محمد ته ئې قرائت کا ، چه سهووسقم لحنی زایل‌کا ، او د پادشاه په اشعاروکې لږ سهولیده‌شي، او ‌‌ _ ‌مائې ټول په بلاغت او فصاحت قایل دی او سماع ته مایل .

---

(۱) مړنی : به زور کی اول و دوم و فتحهٔ سوم ، مردانه و دلیر .

(۲) شال : یا شالکوټ (قلعهٔ‌شال) حدود همین کویتهٔ موجوده است ،که بقول‌ابوالفضل در تشکیلات عصراکبری یکی ازتوابع شرقی قندهار شمرده میشد ، و دارای قلعهٔ‌گلین‌بود، که افغانان‌کاسی و بلوچ دران سکونت داشتند( آئین اکبری ص ۱۸۹ ).

امام‌جامع قندهار **ملا محمد یونس توخی** است ، که فرزند **ملامحمد اکبر** است ، وتدریس علوم میکند ، وبزبان پښتو کتاب « **جامع فرایض** » را نگاشته‌است.

وعالم جامع الکمال دیگر **ملا زعفران تره‌کی** است ، که‌مدار الهام و صدرالافاضل بوده ، بازوی یسار پادشاه ظل‌الله‌است واستاد پسرپادشاه ، **محمد** نیز میباشد ، ملازعفران در حکمت وریاضی‌و طب‌استاداست ، و« **گلدستهٔ زعفرانی** » را درحکمت وطب نوشته است ، این کتاب رامن هم دیده‌و مطالعه کرده‌ام .

پادشاه ظل‌الله شاه حسین ، در جنگ مرد است ، و در ضبط و فتح ممالك جدی و فعالست ، طوایف غلجی تا غزنی پادشاهی‌اورا قبولدارند ، ودر**ابدالی**ها تا سیستان وهرات حکمرانی دارد. درسنه (۱۱۳۸) هجری شاه حسین لشکرفرستاد ، وبه سالاری **بهادرخان** ولایت **شال** و ژوب را فتح کرد . و در سال (۱۱۳۹) خود پادشاه ظل‌الله تا **دیره جات** فتح نمود وتا**گومل**ضبط کرد ، حالا برتمام این‌اراضی سکه‌اش جاری وحکمش ساری‌است.

پادشاه عالم پناه در**ارگ قندهار**، درقصریکه نارنج نامیده میشود ، هفتهٔ یکروز درکتب خانه دربار میکند ، و دران مجلس علماء جمع می شوند ، شعراء و فضلاء راگرد میاورد . من محمد هوتك‌کاتب این‌کتاب همدرین مجلس میباشم ، و اشعار و ابیات پادشاه ظل‌الله را بقلم مینویسم ، وکتاب دیوان وی مرتب شده است ، گاهی به پښتو شعر میگوید ، و وقتی هم بزبان پارسی میل میکند و باستادالعلماء ملایار محمد قرائت مینماید ، تا سهو و سقم آنرا زایل‌گرداند . و در اشعار پادشاه سهو کمتر دیده می‌شود ، و تمام علماء به بلاغت و فصاحت آن قایلند ؛ و به شنیدن آن مایل .

---

(٤) گومل : معبر معروفی است ، که از حوالی‌جنوب شرق غزنی و«وازه‌خوا» بشمال کوه سلیمان به حوضه‌های کنارهای غربی‌سند بیرون می‌آید .

(٥) کې: مخفف کې ئې.

(٦) کاږم : میکشم ، ولی مصدر کښل تاکنون بمعنی نوشتن هم می‌آید ، حاشیهٔ ٤ ص٤ را نیز بخوانید .

هسې وايي محمد كاتب د دې كتاب : چه يوه ورځ د پادشاه ظل الله په قصر كې مجلس وو ، او فضلاء او علماء سره راټول . ناگاه احوال وسو : چه قاصد راغلى دئ ، او پيغام ئې له ليرې ځايه راوړئ . ملازعفران د باندې ولاړ ، يو گړى پس بېر ته مجلس ته راغئ ، او زيرى د فتح د شال او ږوب ئې وكا ، او دابيتونه ئې عرض كړل .«۲٥»☆

بيت

د حسين پادشاه د بخت نندارهگورئ(۱) چه ئې فتح په لښكرو ږوب و شال كا
چه دا زيرى ئې را وړئ دئ حضور ته نو زعفران انعام پر سر زعفرانى شال كا

پادشاه عالم پناه ، ژر زعفرانى شال وركا ، او په دغه مجلس ئې ټولو حاضرينو ته شالونه وښندل ، او د پادشاه په انعام سربلند سول . هسې وايي ، محمد كاتب د دې كتاب : چه [٥٦] د پادشاه جهان پناه اشعار ډېر دي او ډول ډول . خو زه ئې دلته يو غزل را نقل كوم ، چه دا مجموعه د كلام الملوك ملوك الكلام خالي نه وي .

## غزل شاه حسين دامت سلطنة

بېلتانه دې د غمو په چپا وچور كړم په تبارو كې د هجران ئې له' تا دور كړم
بېلتانه دې هسې اوښكې راخېرې كړې ستا د فكر په گرداب كې تل عبور كړم
د فراق پرى مې كښېوت و مرى ته په جهان كې ئې رسوا لكه منصور كړم
په وصال دې هم نابناد يمه دلبرې ! د بېلتون فكر په زړه كې نا صبور كړم
د باڼو غشى مې وخوړ په ځگر كې غما زانو په غمزو غمزو مهجور كړم
خلق ياد زما ، د عشق په لېونو كا
زه «حسين» محبت هسې مشهور كړم

## «۲٦» ذكر د شاعر شيوا بيان محمد يونس خان

هسې روايت كا : زما تربور رحمت **هوتك** چه په سنه (۱۱۳۰) هجري پېښور ته

(۱) بين شال و لايت معروف كه شرح آن در حاشيهٔ ۲ ص۱۱۲ گذشت ، وشال دستار

چنین گوید ، محمد کاتب این کتاب : که روزی در قصر پادشاه ظل‌الله مجلسی بود ، و فضلاء و علماء دران فراهم . ناگاه خبر رسید : که قاصد آمده ، و از جای دور پیغامی آورده . ملا زعفران بیرون رفت ، بعد از مدتی پس به مجلس آمد و مژدهٔ فتح شال و ژوب را داد ، و این ابیات را عرض کرد : «۲۵».

بیت

نمایش بخت شاه حسین را ببینید ! 　　 که ژوب و شال را لشکروی فتح کرد
چون این مژده را بحضور آورد 　　 بنابران زعفران شال زعفرانی را بسر نهاد

پادشاه عالم پناه فوراً شال زعفرانی به وی داد ، و رین مجلس ، به تمام حاضرین شالها بخشید ، و به انعام پادشاه سربلند شدند . چنین گوید محمد کاتب این کتاب : که اشعار پادشاه جهان پناه بسیار است ، ورقم رقم . مگر من درینجا یك غزل ویرا نقل میکنم ، تا این مجموعه از کلام‌الملوك ملوك‌الکلام خالی نباشد :

## غزل شاه حسین دامت سلطنة

فراقت مرا به تاراج غمها داد 　　 و در تاریکی‌های هجرانم از تو دور انداخت
در جدایی تو آنقدر اشك ریختم 　　 که همواره درگرداب فکر عبور میکنم
ریسمان فراق در گردنم افتاد 　　 و در جهانم مانند منصور رسوا گردانید
دروصال توهم ناشادم، ای محبوبه! 　　 زیرا که فکر فراق مرا نا صبور میسازد
تیر مژگان در سینه خوردم 　　 و غمازان به غمزه غمزه مرا مهجور ساختند

مردم مرا درجملهٔ دیوانگان عشق یاد میکنند
من «حسین» را محبت چنین مشهور ساخت

## « ۲۶ » ذکر شاعر شیوا بیان محمد یونس خان

چنین روایت کند: عمزادهٔ من **رحمت،هوتك** . که در سنهٔ (۱۱۳۰) هجری به پشاور

---

☆مزید شرح حال زعفران درآخر کتاب دیده شود(ر۵۲).

تللی وم ، او هلته مې په **خیبر** کې **محمد یونس خان** شاعر شیوا بیان ولید ، او د ده اشعارمې سماع کړل. محمد یونس پهدغه کال یو دېرش کلن ځوان وو ، او په قوم **موسی خیل** ؤ (۱) چه پلار ئې **نورمحمد خان** لـه موسی خېلـو څخـه دکسی ، د **باړو** سره راغلی[۵۷] او په خیبر کې اوسېدئ ، محمد یونس په پېښور کې علمونه او کتابونه ولوستل او په هغه وقت چه عبدالرحمان بابا ژوندی ؤ ، د هغه شاگرد سو او د شعر دیوان ئې جوړ کا چه ډېر غزل لري ، او په خیبر کې معروف سو . محمد یونس مهماندوست او کریم سړی دئ مسافرین ئې په خیبر کې پر دېره اوسي او کـه څوك عالم او شاعر د ده کره ورسي ، ډېرقدر ئې کا او په عزت داری او مېلمه نوازی کې (۲) همت کا ، رحمت هوتك حکایت کا:چه محمد یونس پخپله دېره کې ډېر پاته کړم او هره ورځ ئې ماته ویل چه یوه نن‌شپه‌لا و کړه بیا نو ولاړ سه ، یوه میاشت ئې زما عزت وکا او هره ورځ به ئې اشعارآبدار راته ویل ، دغه دوه غزل رحمت د ده له دیوانه ماته راوړل‌چه په دې کتاب کې ئې ثبت‌کاندم خدای تعالی دې محمد یونس خان ژوندی او معزز ولري :

## غزل

څو ونهښانده پـه مینه باندې سر چا کله بیامونـد شیرین وصل د دلبر چا

که ښایست‌ئې‌ستا له حسنه روزي‌نه‌وي په دا حسن بـه لیده شمس و قمر چا

کـه پخپله مې خپل مهر رهبر نه وي راکاوه بـه د دلبـر د لـور خبر چا

که دا ستاد زلفو بوی ئې‌ترمشام‌شوی دو باره به یادول‌مښکوعنبرچا [۵۸]

په وصال‌پسی خوناب له ستر گووري پـه آسانه وصـل بیا موندهٔ‌کمترچا

ښایسته لیلی به نه مومي پهکور کې څو جدا لـکه مجنون نشي له هر چا

جدایي بې حلق ورتریخ لـکه گنده‌بر کا چـه نوشلی د وصال شهد وشکر چا

وکړم ته ئې‌کاروسپاره «یونسه»!
مقصودکله دئ میندلی په هنر چا

---

(۱) موساخیل اصلاً در دامنه‌های جنوبی کوه سلیمان‌بشرق وادی ژوب سکونت‌دارند

رفته بودم ، و در آنجا در **خیبر** شاعر شیوا بیان **محمد یونس خان** را دیدم ، و اشعار وی را شنیدم . محمد یونس درین سال جوان سی و یك ساله بود به قوم **موسی خیل** بود ، که پدرش **نور محمد خان** از موسی خیلهای کوه کسی ، با **بابر**ها آمده ، و درخیبر میزیست ، محمد یونس در پشاور علوم و کتب خواند و در وقتیکه عبد الرحمان بابا زنده بود ، شاگرد وی شد ، و دیوان اشعار ترتیب داد ، که غزلیات زیادی دارد ، ودرخیبرمعروف گشت . محمد یونس شخص مهماندوست و کریمی است ، در خیبر مسافرین در خانهٔ وی میباشند ، واگر کدام شخص شاعر و عالم بخانهٔ وی آید ، قدرش بسیار میکند ، وبه عزت و مهمان نوازی وی همت میگمارد . رحمت هوتك حکایت کند : که محمد یونس مرا درخانهٔ خویش نگهداشت ، هر روز بمن میگفت : که یکشب دیگر بمان بعد ازان برو . یکماه عزت مرا نگهداشت ، و هر روز اشعار آبداری را بمن میگفت . این دو غزل‌را رحمت از دیوانش بمن آورد ، که درین کتاب ثبت گردانم ، خدای تعالی محمد یونس‌خان را زنده و معزز داراد .

## غزل

تا که کسی در راه عشق سر نداد　　وصل شیرین دلبر را هم نیافت

اگرازحسن تو زیبائی را اقتباس نمیکرد　　آفتاب و مهتابرا باین زیبائی که میدید؟

اگر عشق خودم رهبریم نمیکرد　　طرف دلبر را که بمن نشان میداد ؟

اگر بوی زلفت بمشام شان میرسید　　مشك و عنبر را که یاد میکرد ؟

در شوق وصال خوناب از چشم میچکد　　وصل را بآسانی که بدست آورده ؟

لیلای قشنگ رادرخانهٔ خودنخواهدیافت　　تا که مانند مجنون ازهرکس‌جدا نگردد

فراق حلق‌آنهائی‌را تلخ‌خواهد ساخت　　که شهد و شکر وصال را نوشیده اند

ای «یونس» ! کارخود را بکرم وی بسپار

که مقصود خود را به هنر در یافته ؟

---

(۲) کمی : مخفف کمی ئی .

## غزل وله ایضاً اطال الله عمره

شیرین یار لحما د دواړو ستر گو تور دئ(۱) چه ئې تور د ستر گو نه وي هغه کوردئ
په دنیا کښې چه بنیاد د آشنایئ کا په هغه د جدایئ پوری پور دئ (۲)
واویلا د عاشقئ له ډېره سحره لېونی عاشق وېزار له پلار و مور دئ
که بېدرده ثنا نکا زیان دې کوم دئ ستا د حسن خبر تللئ لور په لور دئ
د محنت ورئ(۳)دې دروند وربا ندې کښېښو خوار عاشق‌تر درانه بارلاندې‌نسکور دئ
باد ئې هم د څنګ و ګرد ته نه رسېږي هغه څوك چه ستا د عشق پر براق سپوردئ
چه د عشق څراغ ئې نه وي په کوګل کښې هغه زړه لکه مرده کوګل ئې‌ګور دئ

زه « یونس » چه ستا په مینه کښې رسوا شوم
اوس په بیارته جاروا ته(٤) راته پېغور دئ [۵۹]

## و من معمیاته باسم یونس

څوچه نیم لب ئې نمك اخستی ندئ (۵) د « یونس » نمکی اسم پر حرام شه

## « ۲۷ » ذکر د سرامد شعرای موجود محمد گل مسعود (٦)

هسې روایت کا ، رحمت هوتك : چه په دوران د سفر د پېښور **محمد گل** په قوم **مسعود** زوی د **محمد داود** ، ولیدل سو ، چه پوخ شاعروو ، او هرکله به ئې بدلی‌ویلی، او دا یوه بدله د ده څخه رحمت تر بور ، را نقل‌کا ، چه دلته ئې‌کاږم :

(۱) د ستر گو تور یعنی سیاهی چشم ، باصطلاح پښتو درموقع نهایت محبت ودوستداری گفته می‌شود .

(۲) یعنی قرض فراق بر ذمت اوست ، پوری ( ملحق ، چسپیده ) و پور ( قرض ) را در یکجا جمع کرده ، و بیت را دلچسب‌تر ساخته .

(۳) وری : به فتحتین ، بار .

(٤) جاروا ته : اصلاً جاروتل بمعنی تنیدن و گرد چیزی گردیدن و رشته یافتن است و ل

## غزل وله ایضاً اطال‌الله عمره

دلبر شیرین سواددو چشم من است　　کسیکه سواد چشم ندارد کور است
کسیکه در دنیا بنیادآشنایی مینهد　　قرض فراق هم بر ذمت ویست
واویلا ! از سحر زیاد عشق :　　که‌عاشق‌دیوانه‌رااز‌پدرومادرش‌دورمیافگند
اگربیدردی ترا نستاید ، چه باك؟　　اخبار زیبایی تو بهر طرف رفته !
بارگران محنت را بر وی نهادی　　که‌عاشق بیچاره،درزیرآن سر نگون گشت
باد هم بگرد و پهلوی وی نمیرسد　　کسیکه بر براق عشق تو سوار باشد
اگردرسینه چراغ‌عشق‌نداشته‌باشد،　　همان دل ، مرده‌ایست که سینه گورویست

من « یونس » که در عشق تو رسواگردیدم
حالا رجوع و تقهقر من ازان سبب طعن است

## از معمیات اوست باسم یونس

تاکه نیم لبش نمك نگرفته باشد　　اسم نمکی«یونس» بر وی حرام است

## « ذکر سرامد شعرای موجود محمد گل مسعود

چنین روایت کند ، رحمت هوتك : که در دوران سفر پشاور **محمدگل مسعود** ابن **محمد داود** دیده شد ، که شاعر پختهٔ بود ، و همواره اشعاری را میسرود ، و همین یك بدله را رحمت از وی نقل کند ، که درینجا مینویسم :

---

(٥) این معما را شاعر بنام خود ساخته ، و ما حل آنرا بذوق خوانندگان محترم میگذاریم ، تا مطابق باصول فن معما ، حل فرمایند .

(٦) مسعود : شعبه‌ایست از قوم وزیری .

## بدله

چه مې جانان په نيمه شپه کې بېل شو (۱) اور را باندې بل شو
چه رانه لاړې ، نو دې غم له مانه مل شو اور را باندې بل شو

☆☆☆

ښکلې ليلى له مانه لاړه ، زه نسکور يمه سوی په اور يمه
د بېلتانه سوراړ(۲) کې ورك مرض مې جل شو اور را باندې بل شو

☆☆☆

رب دې ښايست درپورې اور کې زه دې سکور کړمه وريت دې په اور کړمه
دا سپى رقيب مې ستا په ور د مينې غل شو اور را باندې بل شو

☆☆☆

راشه د خدای د پاره غور کړه «محمد گل» ژاړي تا ته تل تل ژاړي
دا ستا د عشق په واويلا کې لکه نل شو اور راباندې بل شو [۶۰]

## «۲۸» ذکر د فخر الزمان عبدالقادر خان ختك

چه د خوشحال خان ختك زوی دئ ، **نواب محمد اندړ** داسې روايت کا : چه د خوشحال بيگ ختك تر مرگ پس **عبدالقادرخان** په سنه (۱۱۱۳) هجري کابل کې ليدل شوی ؤ ، چه د ختکو د قوم له خوا کابل ته راغلى او دکاروانو د تېرېدلو خبرې ئې د بنگښ پر خوا کولى (۳) وايي : چه عبدالقادر خان غښتلى او گړندی خان ؤ ، د ختکو خانان ئې تابع وو او د ده تولد په سنه (۱۰۶۱) هجري ۲۳ د جمادي‌الثانى واقع شوی ؤ ، اوس چه دغه کتاب تأليف کوم ماته نده ښکاره چه دا خان به وفات شوی وي که نه ! خو هسې گڼم : چه وفات سوی به وي .

(۱) بېل را برخى از افغانها به سكون اول و ياى معروف ميخوانند .
(۲) سوراړ : دشت خشك و سوزان ، حاشيهٔ ۱۰ ص ۴۷ را بخوانيد .
(۳) بنگښ قومى‌است كه‌در اراضى جنوب پشاور و سپين‌غر زيست‌دارد، ودر تشكيلات دورهٔ

بدله

چون دلبرم در نصف شب از من دور گردید　　آتش بر سرم افروخت
وقتیکه از پیش من رفتی ، غمت با من همراه ماند　　آتش بر سرم افروخت

☆☆☆

لیلای زیبا از پیشم رفت و من سر نگون افتادم　　به آتش سوختم
در بادیهٔ فراق گم ، و به مرض جل مبتلا شدم　　آتش بر سرم افروخت

☆☆☆

خداوند بزیبائی خودت بسوزاند ، مرا در دادی　　و به آتشم کباب کردی
رقیب سگ صفت ، بدر تو رهزن عشقم گردید　　آتش بر سرم افروخت

☆☆☆

بیا و برای خدا غور کن ، که «محمد گل» میگرید　　وهمواره پیش تو مینالد
در واویلای عشق تو مانند نی گردید　　آتش بر سرم افروخت

## «۲۸» ذکر فخر الزمان عبدالقادر خان ختك

پسر خوشحال خان است ، **نواب محمد اندر** چنین روایت کند . که پس ازمرگ خوشحال خان ، **عبدالقادرخان** در سال (۱۱۱۳) هجری بکابل دیده شده بود ، که از طرف اقوام ختك بکابل آمده ، ومذاکرهٔ گذشتن کاروانها را از راه بنگبن مینمود . گویند : که عبدالقادرخان یکنفر خان نیرومند و فعالی بود ، که خوانین ختك به وی تابع بودند ، تولدش در سال (۱۰٦۱) هجری به ۲۳ جمادی الثانی واقع شده بود ، و حالا که این کتاب را مینویسم بمن آشکارا نیست ، که این خان وفات شده خواهد بود یا نه ؟ ولی چنین پندارم ، که وفات شده خواهد بود .

---

گور گانیهٔ هند ، تومان بنگبن یکی از لواحق مشهور کابل بود مسکن اقوام مهمند وخلیل و افریدی وختك (آئین اکبری ج۲ ص ۱۹۰-۱۹۳) وجادهٔ بنگبن هم در آنعصر بسوی کابل شهرت داشت .

ځکه چه‌اوس ئی چا د ژوندانه خبر ندئ راکړی. که به مړ وي‌خدای دې وبخښي !
هسې وايي چه عبد القادرخان په هندوستان کې هم عمرونه تېر کړه ، او هلته په **نقشبند يه طريقت** کې داخل سو، متعبد او پارسا سړی ؤ، په خاني او مشر توب کې (۱) انصاف کا ، او له خدای به ئې ترس کا ، عبدالقادرخان د شعر ديوان لري ، او د **يوسف او زليخا** قصه ئې په سنه (۱۱۱۲) هجري نظم کړه ، **نصيحت نامه** ئې هم به پښتو وکښله ، او د **شيخ مصلح الدين سعدی گلستان** ئې په پښتو راواړاوه(۲) ، په سنه (۱۱۱۵) ئې يو بل کتاب نظم کا ، چه نوم ئې‌دئ «**حديقهٔ خټك**» دغه کتاب ما په سنه (۱۱٤۰) هجري له **صدرالزمان بهادرخانه** (۳) وليد چه د مؤلف په دسخط (٤) ؤ ، بهادر خان دامت شوکته هسې روايت کا: چه په **ډېره** (۵) ما دغه کتاب وموند ، چه د يوخټك‌يه‌ضبط کې‌ؤ(٦).

نقل کا : چه عبدالقادرخان په طريقت نقشبندی کې خليفه هم ؤ ، او د پيرخلافت ئې کا ، او د مريدانو [٦١] ارشاد ئې کا ، **شيخ رحماني سعدی لاهوری** (۷) په خلافت تاکلی ؤ ، د عبدالقادرخان شعرونه ډېر دي ، نواب محمد انډړ ، د ده سل غزلونه له کابله راوړل ، اوس زه دلته له « حديقهٔ خټك » څخه د ده يو څو شعرونه نقل کاندم :

## غزل

دريغه نور غمونهٔ ليرې شوی له دله | پکښې غم د خپل آشنا وې تل تتله (۸)
شبنم وصل د گل بيامونده خاموش شو | ترې محرومه شوه چه شورکاندي بلبله

(۱) کې : مخفف کې ئې.
(۲) راواړاوه : گردانيد ، از مصدر اړول (گشتاندن) که درينجا بمعنی ترجمه است.
(۳) صفحهٔ ۱۲٦ رابخوانيد .
(٤) کذا . مخفف دستخط است .
(۵) ډېره : مقصد ډېرهٔ اسماعيل خان يا غازيخان خواهد بود ، زيرا حينيکهٔ شاه حسين پادشاه هوتك بران‌حدود لشکرميکشيد،سپه سالار آن‌همين بهادرخان‌بود(ص۱۲٦)رابخوانيد.

زیرا که اکنون کسی خبرحیات وی را نداده ، اگر مرده باشد ، خــدایش بیامرزاد ! چنین گویند : که عبدالقادرخان در هندوستان هم عمرها گذرانید ، ودرآنجا به **طریقت نقشبندی** داخل شد ، و شخص متعبد و پارسایی بود ، که در امور خانی و کلانتری انصاف مینمود واز خداوند میترسید . عبدالقادر خــان دیوان شعر دارد ، و قصــهٔ **یوسف و زلیخا** را در سنه (۱۱۱۲) هجری نظم کــرد ، **نصیحت نامه** ای هــم بــه پښتو نگــاشت ، و**گلستان شیخ مصلح‌الدین سعدی** را به پښتو ترجمه کرد ، در سال (۱۱۱۵) یك کتاب دیگری را نظم کرد ، که نام آن «**حدیقهٔ ختك**» بود، این کتاب را من بسال (۱۱٤۰) هجری پیش **صدرالزمان بهادرخان** دیدم که بخط مؤلف بود . بهادرخان دامت شوکته چنین‌روایت کند : که درپیره من همین کتاب را دیدم ، که درضبط یك شخص ختکی بود .

نقل کند : که عبدالقادرخان در طریقت نقشبندی خلیفه نیز بود ، و خلافت پیر خود را مینمود وارشاد مریدان را میفرمود ، **شیخ رحمانی سعدی لاهوری** ، وی را بخلافت برگزیده بود . اشعار عبدالقادرخان زیاداست ، نواب محمد اندړ ، صد غزل وی را از کابل آورد ، و حالا من از کتاب «حدیقهٔ ختك» وی چند شعر را نقل میکنم :

## غزل

دریغا ! کاش غمهای دیگر از دل دور میگردید

و همواره غم آشنا دران جای میداشت

شبنم که وصل گل را در یافت خاموش شد

بلبل که‌شوروفغان دارد، ازآن‌محروم گردید

---

(٦) در تألیفات‌عبدالقادرخان ، «حدیقهٔ ختك» پیش‌ازکشف این کتاب بما معلوم نبود ، درمقدمهٔ مفصل‌دیوانش که‌بسال ۱۳۱۷ هجری‌ازقندهار طبع و نشرکردم، ذکری ازین کتاب نرفته ، وآثار دیگر این شاعر ونویسندهٔ نامدار را نشان داده‌ام .

(۷) از مشاهیر روحانی عصر ومرید شیخ آدم بنوری شاگرد حضرت مجدد کابلی است که بسال(۱۱۰٦هـ) ازدنیا رفته (ملاحظه‌شودص۱۰-۲۲٦دیوان عبدالقادرخان طبع‌قندهار).

(۸) تل‌تله، یا تل تله: الی الابد، تا آخر ...

ښه چه ژبه دې قلم شوه په مجلس کې شمع تــا چــه د خپل سوز قصه ویله
عاشق هېڅ نه ؤ خبر د عشق له سوزه دا لنبه (۱) پرې معشوقې ولګوله
د فانوس په پرده څراغ کله پټېږي کــه ئې مخ په پلو پټ ؤ ما لیدله
په ماتم د پــروانــه چــه ئې ځان وسو شمع اور په تندی بل کړ ګرزېد له

درسته شپه دې په نارو «عبدالقادر» کړ
ته ببغمه په پالنګ باندې څمله !

## غزل وله ایضاً

مشه خوښ د پادشاهۍ په تخت ختلو همیشه ئې غم کوه د پرېوتلو
چه مې اوس کړې په مظلومو رډې رډی غافل مشه ددیو (۲) ستر ګو دوتلو
چه پیشه ئې همیشه دل آزاری وي د هغو مخونه ندي د کتلو [٦٢]
ځکه تل کړې په زردوزو جامو کبر چه غافل یې د کفن داغوستلو (۳)
د اجل د سورو (٤) تاخت ناګهانی دی چه هېڅ کور ئې نه خلاصېږي له نتلو

هغه زړه «عبدالقادره» چه مرده وي
په ګــوګــل د نه نــدئ د ساتلو

## و من رباعیاته

و خت د خــزان ؤ، و مې لیدلې یو څو بلبلې چه ژړېدلې
خواری خسته وې، وې مې سزائې (٤) چه بې ګلو نو و پا یېدلې

---

(۱) لنبه : شعله ، که اکنون لمبه ګوئیم .
(۲) دیو : «دا» اشارهٔ قریب است، بدخول دال «دې» می شود بیای مجهول و در بسی از محاوره‌ها در صورت جمع مشارالیه آنرا، مفرد میګویند مثلا: «ددې ستر ګو» ولی در ینجا

خوشا ! که زبانت در مجلس قلم شد ای شمع ! تو که داستان سوز میسرودی
عاشق از سوز محبت هیچ خبر نداشت معشوقه وی را بدین شعله انداخت
چراغ به‌پردهٔ فانوس کی‌پنهان میگردد اگررویش‌زیر گوشهٔ‌چادر بودهم‌میدیدمش
در ماتم پروانه که خود را سوختاند شمع هم آتش بجبین افروخت

«عبدالقادر»را تمام‌شب به‌فغان‌مبتلاء کردی
تو بیغم بر چپرکت خود خفته باش !

## همور است غزل

به اعتلای تخت شاهی خوش مباش همواره در اندوه افتادن ازان باش
چشمیکه اکنون بر مظلوم‌ازقالب کشیدم از برون برامدن آن چشم غافل مباش
کسانیکه پیشهٔ آنهاهمواره‌دل‌آزاریست روی های شان قابل دیدن نیست !
به جامه‌های‌زردوز،ازآنرو کبرمیکنی: که از پوشیدن کفن غافلی !
تاخت سواران اجل نا گهانی است و هیچ خانه ازان تاخت رهایی ندارد

ای «عبدالقادر»! دلیکه‌مرده باشد
نمی‌سزد که در سینه نگهداشته شود

## از رباعیات اوست

در وقت خزان دیدم : بلبلی چند که میگریستند
ذلیل وخسته بودند ، گفتم سزای‌شان‌همینست که بدون گل زندگانی میکنند

---

(۳) اغوستل: پوشیدن ، لبس.

(٤) وې مې ، بمعنی گفتم ، که اکنون ( ومې‌ویل ) گوئیم ولی در بین اشعار و هم در برخی از محاورها(وی) همواره بجای‌وویل ( گفت ) آمده .

## « ۲۹ » ذکر د صدر اکابر دوران بهادرخان

### ادام‌الله بقائه

په دې دوران په قندهار کې مشهور دئ ، په بهادرۍ‌او‌په توریالیوالی معروف ، د پادشاه ظل‌الله بازو دئ ، او د لښکرو سالار ، د شال (۱) او ږوب کلاوې (۲) ئې فتح کا، او ډېرې ئې ضبط کا ، د برى سمند ئې هرې خواته چه مخ کا ، هغه ځای اخلي ، او برى ئې له ازله په برخه دئ ، په قندهار کې ټول خلق پېژني ، او محتاجان او فقراء ئې په کرم او سخاوت ماړه دي . د جود لاس ئې زربخش‌دئ ، او هر کله د غریبانو دستگیری کا . پادشاه عالم پناه شاه حسین ئې‌په‌ورور خطاب کا ، او عوام ئې په **امیر الامراء** یادکا. خان‌عالیمکان په علومو کې عالم دئ ، او په اشعارو بې‌نظیر ، شعراء او علماء پـه لاس د کرم پالي ، او هېڅکله ئې مجلس له دې طایفو خالي نه وي ؛ په [٦٣] صله کې په دوران طاق دئ ، او‌په ښندنه (۳) علماء تـه **حاتم** دئ . چه له سفره راسي ، علمـاء او شعرا مېلمه کا ، او دوی ته ښندنی وکا . خالق تعالی دې دا کـریم دوران **او حاتم‌الزمان** تر ډېره ژوندئ و ساتي ، آمین یا رب‌العالمین .

هسې وايي کاتب‌الحروف محمد هوتك غفرالله ذنوبه وسترعیوبه : چه خان‌عالی مکان د دې کتاب د پاره‌له خپلو‌اشعارو‌څخه ماته یوه بدله راکړه، چه دلته ئې‌ثبت کوم ، چه کتاب له ذکرخیرد دې حاتم خالي‌نه وي ، او هرڅوك چه ئې ولولي، دعا ورته‌وکا،هغه بدله‌داده :




بدله

بیلتون دی زور دئ تر لېمو مې سهار نم څاڅي — لـکه شبنم څاڅي
دا سره یاقوت مې په لمن کې ستا په غم څاڅي — په غم الم څاڅي

---

(۱) حاشیه ۲ ص ۱۱۲ را بخوانید .

(۲) کلاوی : جمع کلا است بمعنی حصاروقلعه ، و در پښتو خیلـی زیـاد است ، هر چند مردم آنرا مفغن قلعهٔ عربی شمرده اند ، ولی بزعم‌نگارنده، پښتو و کلمـهٔ آریائی است ،

## « ۲۹ » ذکر صدر اکابر دوران بهادرخان
## زندگانیش دراز باد

درین دوران به قندهار مشهور است: و در بهادری و شجاعت معروف، بازوی پادشاه ظل‌الله و سالار لشکرهاست. قلاع شال و ږوب را کشود، و ډیرها را ضبط کرد، رخش فتحش بهر سو که روی آورد همانجا را میگیرد. و ظفر از ازل نصیب اوست. در قندهار تمام مردم وی را میشناسند و محتاجان و فقراء از کرم و سخاوتش سیرند، دست جودش زربخش است و همواره، دستگیری غرباء را میکند. پادشاه عالم پناه شاه حسین به وی برادر خطاب میکند و عوامش « **امیرالامراء** » گویند. خان عالیمکان عالم علوم است و در اشعار بی نظیر. شعراء وعلماء را بدست کرم پرورش میدهدومجلس وی هیچگاه ازین طوایف خالی نیست در صله بدوران خود طاق است و در بخشایش به علماء بمنزلت **حاتم** است. وقتیکه از سفر آید علماء و شعراء را مهمان میکند و بآنها بخشایش میفرماید خالق تعالی این کریم دوران و **حاتم زمان** را تا دیری زنده نگهدارد آمین یا رب‌العالمین.

چنین گوید: کاتب‌الحروف محمد هوتك غفرالله ذنوبه وسترعیوبه: که خان عالیمکان برای این کتاب از اشعارخویش بمن یك بدله را داد که درینجا ثبت میکنم، که کتاب از ذکر خیر این حاتم زمان خالی نباشد و هر کس که خواند دعایش کند. آن بدله اینست:

### بدله

فراقت غالب است، و سحرگه از چشمم نم — مانند شبنم میچکد
در غمت این یاقوت احمر بـه دامنم: — باکمال الم میچکد

---

بخاقان وجرماس جنگی قلا ☆ نگر کاین سپهبد چه کرد از بلا (ص ۳۸۰)

(۳) ښندنه: بهٔ فتحهٔ اول و سکون دوم و زورکی سوم و چهارم، بخشش، اعطا.

ګوره لیلی باران د اوښو ستا په چم ځاځي — خنګه پرچم ځاځي (۱)

☆☆☆☆

راغله لیلی په شینکی خال نځا په ګلوکوي — په سرو منګـولـوکـوي
سهار چه وزي سیل کا ، رغ په بلبلوکوي — ګل په اوربلو کـوي
ملالی(۲) سترګی ئې کاته په ویرژلوکوي — زیب په کجلـوکـوي
د ژوبل زړه وینې په هر ګړی هردم ځاځي — لـکـه شبنم ځاځي

☆☆☆☆

ښکلی نجلی ! د باغ په‌لور مه ځه نځا مکوه — عـاشق رسوا مکـوه
وریت سوی‌زړه مې‌دی‌مین پورې خندا مکوه — راشه جفا مکوه [٦٤]
زه یم پتنګ ته یې ډیوه ماجلبلا (۳) مکوه — نـور ظلـم بیـا مکوه
یم ستا له عشقه لېونې پـرمـا ، ماتم ځاځي — غـم او الـم ځـاځـي

## « ذکر د شاعر حقیق ملا محمد صدیق پوپلزی

په ارغسان (٤) کې اوسي ، د **یار محمد پوپلزی** زوی دی ، او د دې زمـانې ځوان شاعر دی . په عمـر درویشت‌کلن دی ، صرف و نحو ئې پر **ملا محمد نور** بریځ ویلی دی ، په فقه او منطق هم پوهېږي ،کله چه **قندهار** ته راسي کاتب‌الحروف ئې ويني او مجلس ورسره‌کا ، عشقي ځوان دی او زړه ئې له‌لاسه ایستلی . پخپل محبوب پسې ژاړي ، زاری کا ، ګریانی کا ، دردمن زړه لري ، او سترګې د اوښکو ډکې لري ، مینې هسې پـه‌اور سوی دی ، چه له کوره کلی ورك وي ، سوزناکې بدلې لولي ، اوکله چه د دردمندانو په ډله کښېني ، مجلس ژړوي او غمجن زړونه پخپلو

---

(۱) تجنیس است . چم اول بمعنی محله وکوچه ودوم بمعنی اصول وترتیب وطرز است.
(۲) ملالی : صفت چشم مي‌آید، پس ملالی سترګی به چشم بیمار و چشمیکه اثرناك و نهایت زیبا و دارای حرکات ملایم اما ساحرانه باشد گفته میشود .
(۳) جلبلا : جل زده و سوخته و خوب شعله زده . این کلمه از جل ( اشتعال درونی

ای لیلی ! ببین بکویت باران اشك می‌بارد　　و به چه ترتیب میچکد ؟



محبوبه با خال کبود آمده،ودر بین گل میرقصد　　با سرانگشت خون آلود
سحرگه که بسیر بیرون میرود، بلبلان را به فغان می‌آورد　　گل به اوربل می نهد
وچشم بیمارش که نگاهی به مجروحین می اندازد:　　سرمه آن را زیب میدهد
خون دل مجروح هر ساعت و هردم :　　مانند شبنم میچکد



ای دختر زیبا ! بسوی باغ مرو ، و مرقص :　　عاشق را رسوا مساز !
دل‌سوختهٔ من مفتون گردیده ، و بر وی مخند　　بیا و جفا مکن !
من پروانه‌ام ، و تو چراغی ، مرا مسوزان !　　و زیاده ازین جور مفرما
از عشق تو دیوانه‌ام ، و بر من ماتم　　و غم و الم میریزد

## «۳۰» ذکر شاعر حقیق ملا محمد صدیق پوپلزی

در **ارغسان** حیات بسر می‌برد ، فرزند **یار محمد پوپلزی** ، و شاعر جوان این عصر است ، به عمر بیست و سه سالگی است ، صرف و نحو را بر **ملامحمد نور** بړیځ خوانده ، و به فقه ومنطق هم می‌فهمد وقتیکه بقندهار آید ، کاتب‌الحروف اورامی‌بیند ، و با وی صحبت میکند ، جوان عشقی است ، و دل از دست داده . در عقب محبوبش میگرید ، زاری میکند ، و فریاد می‌نماید ، دل دردمندی دارد و چشمی پر از اشك . عشق چنانش سوختانده ، که از خانه و قریه گم می باشد ، و اشعار سوزناك میسراید وگاهی که در زمرهٔ دردمندان می‌نشیند ، مجلس را می گریاند ، و دلهای محزون

---

و حرارت زدگی) وبـل ( افروخته و درگرفته ) ساخته شده ، و جلبل هم گویند که معنی درخشان و تابنده را هم در بر دارد .

نارو غلبلو سوځي ، زمانه د ده پرځوانۍ افسوسونه کا ، او عشق ئې جنون ته رسېدلی دئ بالبداهه اشعار وايي ، او د زړه درد په سوده (۱) کوي .

یوه ورځ د کاتب الحروف په کور کې ؤ اومائې د حال پوښننه کوله د زړه په خواله کښېوت ژړل ئې ، او دا بدله ئې : بالبداهه وويله :

بدله

لکه بلبل چه بېله ګله بل ارمان نلري هسې بې یاره بله هیله عاشقان نلري

☆☆☆

چه ژړاکاندم بېله یاره بل مطلب نلرم چه هسې سوریمه په وینو بل سبب نلرم [٦٥]
بې یاره نور څه نه غواړمه نورمطلب نلرم چه څوك مین سي بېله یاره بل ارمان نلري

☆☆☆

ترتا چه ځان قربانومه اې نیازمنه یاره تل دې غمونه ګلومه (۲) اې نیازمنه یاره
له ستر ګو اوښې تویومه اې نیازمنه یاره زړه مې بېتاپه یوساعت دمه (۳) او توان نلري

☆☆☆

که ته مې وژنې ، که پرېږدې اختیار خو تا لره دئ غم دې پیدا ندئ بل چالره خاص ما لره دئ
زړه له راغلی دئ مېلمه سبا بیګا لره دئ دزړه له کوره څخه تګ په هېڅ هېڅ شان نلري

## « ۳۱ » ذکر د برګزیدهٔ سبحانی ملا پیر محمد میاجی

**ملا پیر محمد هوتك** د ملاسرور مغفور زوی دئ چه ملاسرور له **میافقیر الله صاحب** څخه استفاضه کړې ده ، او ملا پیر محمد له څپله پلاره فیض ومومند . د علیین مکان حاجی میرخان سره په جنګو کې ملګری ؤ ، چه د شاه ظل الله ورور ، شاه محمود ادام الله دولتهم اصفهان ته ولاړ ، ملا پیر محمد هم ئې (٤) هلته و غوښت

(۱) سوده : به واو مجهول و دال زورکی دار ، تسکین ، اطمینان .

(۲) ګلول : به زورکی اول و دوم وسوم ، برداشت و تحمل ، وبرخود ګوارا ساختن .

را به‌فغان‌و ناله‌های‌خودمی سوزاند ، زمانه برجوانیش افسوسهادارد،وعشقش بمرتبهٔ جنون‌رسیده · بالبداهه اشعاری میسراید ، و تسلی درد خاطر را به آن میکند .

روزی در خانهٔ کاتب‌الحروف بود ، و پرسان حالش مینمودم ، باظهار درد دل آغاز کرد ، میگریست ، و این بدله را بالبداهه گفت ·

## بدله

مانند بلبلیکه بدون گل ارمانی ندارد　　عاشقان همچنین بدون یار آرزوئی ندارند

☆☆☆

اینکه میگیریم ، مطلبی جز یار ندارم　　بهمین سبب بخون گلگونم !
بدون یارچیزدیگری‌نمیخواهم‌مطلب‌دیگری‌ندارم　　بلی کسیکه عاشق گردد ارمانی‌جزیار ندارد

☆☆☆

ای یار بیباك اینکه خود را فدایت میسازم　　اینکه همواره بار غمهای ترا میکشم :
اینکه همواره از چشم اشك میریزانم :　　سببش اینست که ساعتی بیتوآرام ندارم

☆☆☆

اگرمرا میکشی‌یا زنده‌میمانی اختیار باتست　　غمت برای دیگری‌نی،بلکه مخصوص منست
سحرگه و شام مهمان دل من است　　از خانهٔ دل بهیچ صورت رفتنی ندارد

## « ۳۱ » ذکر برگزیدهٔ سبحانی ملا پیرمحمد میاجی

**ملاپیرمحمدهوتك** پسرملاسرورمغفوراست، که ملاسروراز **میا فقیرالله‌صاحب** استفاضه کرده ، و ملا پیرمحمد از پدر خویش قبض دریافت · در جنگها با علیین مکان حاجی میرخان همراه بود وقتیکه شاه محمود بادشاه ظل‌الله ادام‌الله دولتهم به اصفهان رفت، ملاپیرمحمد راهم به آنجاخواست

---

(۳) دمه ! به فتحهٔ اول و زورکی دوم آرام راحت ·

او له انفاس میمون ئې استفاده کا او خلق د خدای شریعت او د **امام اعظم صاحب** مذهب ته رابولي. نقل کاچه: **میاجی صاحب** له **روافضو** سره مباحثې کا او په د لایلو علمي دوی ملامت کا چه لکه علماء روم چه په اصفهان کښې دي هم د ملا پیر محمد صاحب عزت کا، او «**پیر افغان**» ئې لقب کا، میاجی صاحب په علم اخلاق کښې یو کتاب کښلی دئ چه «**افضل الطرایق**» ئې نوم دئ او په هغه کتاب د عقایدو او اخلاقو بیان کا، یو بل کتاب هم لرینه چه «**القرایض فی ردالروافض**» ئې نوم دئ په [٦٦] افضل الطرایق کښې ئې دا حکایت کښلی دئ چه زه ئې له هغه کتابه دلته ثبت کاندم چه په دې کتاب کښې یادگار وي (۱).

## حکایت

**شیخ متی** چه **خلیلی** ؤ(۲) دی له آره(۳) لوی ولي ؤ
یوه ورځ روان پر لار ؤ لوی ښبنتن په استغفار ؤ
کړه ده ذکر د غفار یو شیبه(٤) نه ؤ اوزگار
پر دې لار وې تیرې گټې لارې مخکې وې په پټې
ډېرې شپې راغی رویدار چه ئې صافه کړله لار
یو دهقان به آبیاری کړه شپه په شپه به ئې خواری کړه
ده به لید په توره شپه شیخ متی به زیار اخته
له راحته په بیزار ؤ ټوله شپه به هم بیدار ؤ
یوه شپه راتېر ملیار سو شیخ متی ته په گفتار سو:
ای د خدای رویداره څه کړې؟ دومره زور زحمت پر څه کړې؟
ته بادار یې د ولیانو ته قدوه د صالحانو
ستاد در خاورې سره زر دی د هر چا کحل البصر دی
په شپو شپو یې ته بېخواب په زحمت په اضطراب [٦٧]

---
(۱) ر: ٥٣

و ازانفاس میمون‌وی استفاده میکند ، ووی خلق خدای را بشریعت و بمذهب **امام اعظم صاحب** دعوت مینماید. نقل کنند : که **میاجی صاحب باروافض** مباحثه هامیکند و بدلایل آنهارا ملامت میفرماید، چنانچه علمای روم که دراصفهانند ، هم ملاپیرمحمدرا معزز میدارند، و بلقب«**پیر افغان**»میخوانند . میاجی‌صاحب درعلم اخلاق کتابی نوشته، که«**افضل الطرایق**» نامدارد .

و دران کتاب عقاید و اخلاق را بیان میکند ، یك کتاب دیگری هم دارد ، که « **القرایض فی ردالروافض** » نام‌آنست .درافضل‌الطرایق حکایتی رانگاشته ، که من‌ازان کتاب درینجا ثبت میگردانم ، که درین کتاب یادگار باشد :

## حکایت

**شیخ متی خلیلی** — که از اصل ولی بزرگی بود
روزی بر راه میگذشت — و به خداوند استغفار میکرد
ذکر غفار می نمود — و دمی ازان فارغ نبود
برین راه سنگها افتاده — و راه و زمین را نهفته بود
آن‌برگزیده‌چندین‌شب‌آمد — و آنراه را صاف کرد
دهقانی آبیاری میکرد — و هر شب زحمت میکشید :
در شب تاریك می‌دید : — که‌شیخ‌متی به‌تکلیف گرفتار است
از راحت بیزار : — و تمام شب بیدار می‌بود
شبی دهقان آمده — و به شیخ متی گفت :
«ای برگزیدهٔ‌حق!چه‌میکنی — اینقدرتکلیف‌وزحمت‌چرامیکشی؟
تو سردار اولیایی ! — و قدوهٔ صلحائی !
خاك در تو طلاست — کحل البصر هر کس است
شبها بیخوابی ! — در زحمت و اضطرابی !

---

(۳) آره : در پښتو بمعنی بنیاد و اساس است .

پا کوې د لارې گټې (۱) په دې خاورو څه دی گټې؟»
داسې ووې شیخ متي : د مولا په عشق پتي (۲)
« چـه خـدمت د خلق الله یـو گـړی پـه یـوه ساه
تر هرڅه بهتر دئ wrوره !
زده کړه دا خبره گوره ! »

## «۳۲» ذکر د شاعرخوږ گفتار اللهیار افریدی

**عبدالعزیز کاکړ** هسې روایت کا : چه دا شاعر په **بوری** (۳) کې اوسي ، اوس د څلو پښتو کالو په عمر دئ ، دیوان د شعر لري ، کلام ئې شیرین دئ لکه عسل ، ماته ئې عبدالعزیز کاکړ دغه غزل راکا ، چه په دې کتاب کې ثبت سي :

### غزل

چه ستا په غم کې بندیوان یم رابهر به نشم د بېلتون اوښی تویومه بې پرهر (٤) به نشم
رب دې لتاړد عشق په غم کړه چه زما حال وویني شنډه(٥) بی برهونه عشق دئ هېڅ په بر به نشم
په دردې پروت یم دگدا په څېر، نظر نکوې که مرمه هم بې نیازه یاره ستا نظر به نشم
اوردې دمینې راته بل کاسېزې وریتدې کړمه ستا د وصال په اوبو سوړ، سوی ځیگر به نشم
که جفاکاندې که وفا پروت دې وور ، تهیمه ستا له دلباره به مخ نکړم ، په بل ور به نشم
« **اللهیار** » ولاړ دئ په دلبار ، نظر دې غواړي لیلی !
که مې هرڅو رټې (٦) شړې ، زه پرحذر به نشم [٦٨]

## «۳۳» ذکر د صدر دوران بابوجان بابی

د **کرم خان بابی** زوی دئ، چه په اتغر کې اوسېدئ هغه وقت چه حاجي میرخان علیین

(۱) تجنیس تامست گټې اول بمعنی سنگها ، و دوم بمعنی منافع است .
(۲) پتي : منسوب به پت بفتحهٔ اول بمعنی معزز و محترم و سر بلند .

سنگهای راه را پاك میکنی درین خاك چه نفع دیدی ؟
شیخ‌متی که به‌عشق‌خداآ برومندبود چنین گفتش :
« که خدمت خلق الله ساعتی و دمی
ازهرچیز بهتراست ، ای برادر !
این سخن‌رابیاموز ئودقت کن!»

## « ۳۲ » ذکر شاعر شیرین گفتار اللهیار افریدی

**عبدالعزیز کاکړ** چنین روایت کند : که این شاعر در **بوری** زندگانی دارد ، و اکنون بعمرچهل سالگی است ، دیوان شعردارد ، کلامش مانند عسل شیرینست ، عبدالعزیز کاکړ این غزل وی را بمن داد ، تا درین کتاب ثبت گردد :

### غزل

در غمت محبوسم ، و بیرون نخواهم رفت اشك فراق‌میریزانم، و بی زخم نخواهم بود
خدایت به غم‌عشق گرفتارسازدتاحال‌مرا ببینی عشق درخت بی بری‌است، که هیچ باری‌ازان نخواهم یافت
در درت مانندگدا افتاده‌ام ، نگاهی نمیکنی اگر بمیرم‌هم‌ای‌یار بیباك ! بمن نظری‌نخواهی‌کرد
آتش‌عشق‌را برای من افروختی میسوزانی وکبابم‌کردی به‌آب وصالت‌جگرسوخته‌ام‌خنك نخواهد شد
اگر جفا میکنی یا وفا ، بدرت افتاده‌ام وازدربارتوبه دردیگری‌روی‌نخواهم گشتاند
**اللهیار** بدربارت ایستاده ، وای محبوبه نگاهت میخواهد
هر چند مرا توبیخ کنی و برانی ، حذری نخواهم کرد

## « ۳۳ » ذکر صدر دوران بابوجان بابی

فرزند **کرم‌خان بابی** است ،که در اتغر میزیست ، وقتیکه حاجی میرخان علیین

(٤) پرهر: بضمهٔ اول وسکون دوم وفتحهٔ‌سوم،مخفف‌پرهار که بمعنی‌زخم وجراحت‌است.
(٥) شنډه : مؤنث شنډ است ، بمعنی عقیم و بی‌بر ، و ابتر .

مکان په قندهار کې د ظالمانو لښکرمات کا ، او گر گین خان ئې واژه · **بابوجان بابی** له کلاته ډېر غښتلي راوستل ، او له **ماشوره** (۱) ئې دقندهار ښار حصار و نیو، او هغه‌وقت چه ئې گر گین خان مړ کا ، نوئې په کلات کې د حاجی میرخان له خوا حکومت کا ·

هسې وایي‌محمد کاتب‌الحروف : چه پـه کال (۱۱۳٤) سنه هجري چهَ شاه محمود پادشاه د پادشاه دوران شاه حسین وروور لښکرو کاوه(۲) او اصفهان ته ئې د یرغل‌عزیمت‌وکا ، بابوجان بابي سره له خپلو غښتلیو ځوانانو ، چه درې زره تنه هوتك ؤ ، او **توخي** او ترکی او ځنی **اکاخیل** راغلل قندهار ته ، او د شاه محمودسره ولاړل اصفهان ته ، په جنگو کې بابوجانِ بابی‌هسې مېړانه وکا ، چــه رستم دوران ئې هېر کا · بابوجان دمیاجي‌صاحب شاگرد اومرید ؤ او په سنه (۱۱۲۹)هجري ئې په‌مثنوي د «**شهااوگلان**»(۳) هغه قصه نظم کړه، چه **پښتانه** ئې نقل کا په مجلسو کـې · دا کتاب «**قصص العاشقین**» نومېږي، اوښه ښه شعرونه‌لري ،په‌دغه کتاب کې د عشق توصیف کا ، او هسې وایي :

## مثنوی عشق

عشق یوهسې توریالی دئ — چه پر هرځای ئې برید دئ
د عشق اورهسې‌سوزان دئ — چه سو ځلی ئې جهان دئ
زړه بې عشقه کله زړه دئ — چه بې‌عشقه‌زړه‌دمړه دئ[٦٩]
نه دئ عشق په یوه رنگ — کـلـه صـلـح ،گهی جنـگ
پښتانـه کـانـدي متل : — چه دئ خوږ تر شات ، عسل
« چه‌بې عشقه سر کدو دئ — تش بې مغزه یو لاڼو دئ
زړه بې عشقه په کار ندئ — هم هرزړه سزاوار نـدئ
چه د عشق و کا خبری — کړي په غوږ دا مرغلری
د پاکانوعشق‌سزا دئ(٤) — امانت دا ، د مولا دئ

---

(۱) ماشور : اکنون قریه‌ایست بطرف جنوب شهر کهنه و جنـوب غربی شهر موجودهٔ قندهار بفاصلهٔ تخمیناً (۷) میل، که آثارحصار قدیم و آبادانی‌شهردرانجا نمایانست ، ودر دورهٔ

**مکان**، در قندهار لشکر ظلمه را شکستاند، وگرگین خان را بکشت، **بابوجان بابی** از کلات نیرومندان زیادی راآورد، وازراه **ماشور** حصارقندهاررا گرفت، ووقتیکه گرگین‌خان راکشت، از طرف حاجی میرخان در کلات حکومت میراند.

چنین گوید محمد کاتب‌الحروف: که در سال (۱۱۳٤) هجری، کــه شاه محمـــود برادرپادشاه‌دوران شاه حسین لشکرکشی کرد، عزیمت هجوم براصفهان را نمود، بابوجان بابی با جوانان نیرومند خویش کــه سه هــزار نفر هوتك، و **توخی**، تره‌کی و**اکاخیل** بودند بقندهارآمد، و با شاه محمود باصفهان رفتند. بابوجان بابی درجنگها چنان‌مردانگی نمود که رستم دوران را فراموش کرد. بابوجان شاگــرد و مرید میاجی صاحب بود و در سال (۱۱۲۹هـ) همان قصهٔ «**شهاوگلان**» را کــه **پښتونها** در مجالس خود نقل کنند، بمثنوی منظوم کــرد. و این کتــاب «**قصص‌العاشقین**» نامدارد، و دارای اشعار خوبی است. درین کتاب عشق را می‌ستاید، و چنین گوید:

## مثنوی‌عشق

عشق چنــان راد دلیریست — کــه در هر جا مظفر است
آتش عشق چنان سوزانست — کــه جهانی را سوختا نده
دل بــی عشــق، دل نیست — زیرا دل مرده بی عشقست
عشق به‌یکرنگ‌وطرز نیست — گهی‌صلح، وگهی جنگست
افغانــان مثلی دارنــد: — کــه از شهد شیرین است
«سر بی‌عشق بمنزلهٔ کدواست» — و مجوف بی مغز است
دل بی عشق‌کار آمد نبوده — ونیزهر دل سزاوار نیست:
که از عشق سخنی راند — ویااین‌گوهررا بگوش‌کشد
عشق سزا وار پــاکــان — و امــانــت خــداونــد است

(۳) این قصه از شیرین ترین قصص ملی پښتو است، که دو نفر پهلوان آن شها(زن) گلان (مرد) نمونهٔ برجستهٔ عشق پاك، عفت، اخلاق پاکیزه و بسی از سجایای ملی‌اند، و تاکنون این داستان ملی در بین عوام‌موجود است. و بصورت اشعار خالص ملی، ناره های منظوم و قسمت های منثوری دارد. (٤) ر: ٥٤.

مکان په قندهار کښې د ظالمانو لښکرمات کا ، او گرگین خان ئې واژه . **بابوجان بابی** له کلاته ډېر غښتلي راوستل ، او له **ماشوره** (۱) ئې دقندهار ښار حصار ونیو، او هغه‌وقت چه ئې گرگین خان مړ کا ، نوئې په کلات کښې د حاجی میرخان له خوا حکومت کا .

هسې وايي‌محمد کاتب‌الحروف : چه پـه کال (۱۱۳٤) سنه هجري چهٔ شاه محمود پادشاه د پادشاه دوران شاه حسین ورور لښکروکاوه(۲) او اصفهان ته ئې د یرغل‌عزیمت‌وکا ، بابوجان بابي سره له خپلو غښتلیو ځوانانو ، چه درې زره تنه هوتك ؤ ، او **توخي**او ترکی او ځنی **اکاخېل** راغلل قندهار ته ، او د شاه محمودسره ولاړل اصفهان ته ، په جنگوکښې بابوجان بابی‌هسې مېړانه وکا ، چـه رستم دوران ئې هېرکا . بابوجان دمیاجي‌صاحب شاگرد اومرید ؤ اوپه سنه (۱۱۲۹)هجري ئې په‌مثنوي د «**شهااوگلان**» (۳) هغه قصه نظم کړه، چه **پښتانه** ئې نقل کا په مجلسو کـښې . دا کتاب «**قصص العاشقین**» نومېږي، اوښه ښه شعرونه‌لري ، په‌دغه کتاب کښې د عشق توصیف کا ، او هسې وایي :

## مثنوی عشق

عشق‌یوهسې توریالی دئ چه پر هرځای ئې برید دئ
د عشق‌اورهسې‌سوزان دئ چه سو ځلی ئې جهان دئ
زړه بې عشقه‌کله زړه دئ چه‌بې‌عشقه‌زړه‌دمړه دئ[٦٩]
نه دئ عشق په یوه رنگ کله صلح ، گهی جنگ
پښتانه کـانـدي متل : چه دئ خوږ تر شات ، عسل
« چه‌بې عشقه سرکدو دئ تش بې مغزه یو لاږو دئ
زړه بې عشقه په‌کار ندئ هم هرزړه سزاوار ندئ
چه د عشق و کا خبری کړي په غوږ دا مرغلری
د پاکانوعشق‌سزا دئ(٤) امانت دا ، د مولا دئ

(۱) ماشور : اکنون قریه‌ایست بطرف جنوب شهر کهنه و جنوب غربی شهر موجودهٔ قندهار بفاصلهٔ تخمیناً (۷) میل، که‌آثارحصار قدیم وآبادانی‌شهردرانجا نمایانست ، ودر دورهٔ مغولیه دروازهٔ جنوبی‌حصارقدیم قندهاررا دروازهٔ ماشورمیگفتند(ابوالفضل ،اکبر نامه ج۱)

(۲) وکاوه : کړ د ، که «وکړ» ، «وکړ» ، «وکا»هم گوئیم .

مکان ، در قندهار لشکر ظلمه را شکستاند ، وگرگین خان را بکشت ، **بابوجان بابی** از کلات نیرومندان زیادی راآورد ، وازراه **ماشور** حصار قندهاررا گرفت، ووقتیکه گرگین‌خان راکشت ، از طرف حاجی میرخان در کلات حکومت میراند .

چنین گوید محمد کاتب‌الحروف : که در سال (۱۱۳٤) هجری ، که شاه محمود برادر پادشاه‌دوران شاه حسین لشکرکشی کرد ، عزیمت هجوم براصفهان را نمود ، بابوجان بابی با جوانان نیرومند خویش که سه هزار نفر هوتك ، و **توخی** ، تره‌کی **واکاخیل** بودند بقندهارآمد ، و با شاه محمود باصفهان رفتند .بابوجان بابی درجنگها چنان‌مردانگی نمود که رستم دوران را فراموش کرد . بابوجان شاگرد و مرید میاجی صاحب بود و در سال (۱۱۲۹هـ) همان قصهٔ « **شهاوگلان** » را که **پښتونها** در مجالس خود نقل کنند ، بمثنوی منظوم کرد . و این کتاب « **قصص العاشقین** » نامدارد ، و دارای اشعار خوبی است . درین کتاب عشق را می‌ستاید ، و چنین گوید :

## مثنوی‌عشق

| | |
|---|---|
| عشق چنان راد دلیریست | که در هر جا مظفر است |
| آتش عشق چنان سوزانست | که جهانی را سوختا نده |
| دل بی عشق ، دل نیست | زیرا دل مرده بی عشقست |
| عشق به‌یکرنگ وطرز نیست | گهی‌صلح ، وگهی جنگست |
| افغانان مثلی دارند : | که از شهد شیرین است |
| «سر بی‌عشق بمنزلهٔ کدواست » | و مجوف بی مغز است |
| دل بی عشق کار آمد نبوده | و نیزهر دل سزاوار نیست: |
| که از عشق سخنی راند | ویااین گوهررابگوش کشد |
| عشق سزا وار پاکان | و امانت خداوند است |

(۳) این قصه از شیرین ترین قصص ملی پښتو است ، که دو نفر پهلوان آن شها(زن) گلان ( مرد ) نمونهٔ برجستهٔ عشق پاك ، عفت ، اخلاق پاکیزه و بسی از سجایای ملی‌اند ،و تاکنون این داستان ملی در بین عوام‌موجود است . و بصورت اشعار خالص ملی ، ناره های منظوم و قسمت های منثوری دارد .　(٤) ر : ٥٤ .

## ۳٤ » ذکر دافصح دوران ، ریدی خان مهمند

**ریدی‌خان**زوی دئ د **غیاث خان** ، او د **مسعود خان‌مهمند**لمسی دئ ، چه **کلی د مهمند**(۱) ئې په نامه باله سي، غیاث‌خان د حاجي‌میرخان علیین‌مکان‌همرازاو ملگری ؤ ، او ریدیخان اوس تکړه سړی ، او د آشنایانو همباز او دمساز شاعر دئ ،د پادشاه ظل‌الله په مخ کې‌عزت‌لري‌او د شوکت‌اومکنت‌خاوند دئ ، پرآشنایانومهربان‌دئ ، اودکاتب‌الحروف مجلسي دئ اشعار ئې‌خواږه دي ، او د بلاغت علوم ئې لوستی دئ،په فقه اوتفسیر او صرف او نحو کې هسې ښه او پوره لوست لري ، چه طالبان ئې حل دمشکلاتو ځنې کا .

ریدیخان په سنه (۱۱۳٦)اصفهان ته ولاړ ، اوهلته ئې د شاه محمود سره صحبتونه وکا ، بیا قندهار ته راغئ ، او یو کتاب ئې په شرح حال او د جنگو د حاجی میرخان ، او د شاه‌محمودو کښلئ ، داکتاب [۷۰] څلور زره بیتونه دي ، نوم ئې دئ « **محمود نامه**» کله چه ئې د پادشاه ظل‌الله په مخ کې ولوست ، زر طلاوې (۲) صله وموندله ، په طبع کې ئې هسې‌جوادیت پروت دئ چه هغه صله ئې په یوځو ورځې پریارانواوآشنایانو نثار کړه ، او ریدیخان غزل او مثنوي او رباعي پخپل دیوان کې‌لري ، او «**محمودنامه**» ئې هسې خوږ کتاب دئ‌چه اکثر پښتانه ئې په مجلسو کې لولي ، د گرگین خان‌گرجی د و ژلو قصه او د اصفهان د فتوحاتو نقلونه ټول پکښې سته .

هسې وایي ، محمدکاتب‌الحروف : چه ما له ریدیخانه هسې درخواست وکا : چه په کتاب کې د محمود نامې څخه ډېره برخه ثبت‌کاندم ، ریدیخان هم ماته دکتاب یو باب راکا چه د گرگین خان د و ژلو قصه ده ، او هغه مادلته وکښل بتوفیق‌الله تعالی .

## مثنوی نقل له محمود نامې څخه دئ

په بیان دوژلودگرگین‌خان ، او مدح وصفت د حاجی‌میرخان علیین مکان

اوس به‌نو تا ته حکایت کړم د ښو | خوږ روایت دگرگین‌خان د وژلو

(۱) مهمند : این قریه تاکنون هم بهمین نام مشهور ، و بفاصلهٔ تخمیناً (٦) میل بشرق قندهار بر جادهٔ کابل افتاده ، و رباط اولین بطرف کابل شمرده میشود .

## «۳٤» ذکر افصح دوران، ریدیخان مهمند

**ریدی خان** ولد **غیاث خان** است، و نواسهٔ **مسعود خان مهمند** است، که **قریهٔ مهمند** بنام آنهاست، غیاث خان همرازوهمراه حاجی میرخان علیین مکان بود، وریدیخان حالا شخص فعال و با آشنایان همباز وشاعردمسازیست، بحضور پادشاه ظل‌الله عزتی دارد و صاحب شوکت و مکنت است، برآشنایان مهربانست، و همصحبت کاتب‌الحروفست: اشعارش شیرین و علوم بلاغت را خوانده‌اند، درفقه وتفسیر وصرف و نحو، چنان معلومات خوبی دارد که طالبان آن علوم، حل مشکلات از وی کنند.

ریدیخان در سال (۱۱۳٦) به اصفهان رفت، و در آنجا با شاه محمود صحبتها کرد. بعد از آن‌بقند هار آمد، و کتابی در شرح حال و جنگهای حاجی میرخان، و شاه محمود نوشت، این کتاب چهار هزار بیت است، و نام آن «**محمود نامه**» است، وقتیکه بحضور پادشاه ظل‌الله خواند، هزار طلا صله یافت. در طبعش چنان جودی هست، که آن صله را در چند روز نثار یاران و آشنایان نمود، و ریدی خان در دیوان خود غزل و مثنوی و رباعی دارد، و«**محمودنامه**»اش چنان کتاب‌شیرینی است، که‌اکثر پښتونهاآنرا در مجالس میخوانند. قصهٔ کشتن گرگین گرجی، و فتوحات اصفهان همه درانست.

چنین گوید محمد کاتب‌الحروف: که من از ریدی خان چنین درخواست کردم، که درین کتاب ازمحمود نامه حصهٔ زیادی را ثبت کنم، ریدیخان نیز بمن یکباب کتاب را داد که قصهٔ کشتن گرگین خان است، و آنرا من درینجا نگاشتم بتوفیق خدای بزرگ.

### مثنوی نقلست از محمود نامه

در بیان کشتن گرگین خان، ومدح وصفت حاجی میرخان علیین مکان

حالا بتو حکایت خوبی خواهم‌کرد روایت شیرین قتل گرگین خان

(۲) طلاوی، مخفف طلاوی ئی است.

چه میرخان تللی اصفهــان ته ونه (۱) مخ ئې مکـې د پاك سبحان ته ونه
پاچاتې(۲)عرض کړتول اقوال دپښتون دګـرګـین ظلـم بد احوال د پښتون
پاچا ویل : «زه نسوای کولای چاره دګـرګـین خـان ظلـم و ستم دپاره
که ئې معزول کړم قندهار نه پرېږدي جوروستم اوخپل شعار نه پرېږدي [۷۱]
ګرګین خوګرګ دئ ګرګ خو ظلم کوي وینې تووینه (۳) هم پسو نـه څیري
زه هم خایف یم، چه به څکړم ګرګین نا مسلمان دئ ، **ارمنی** دئ بیدین
نه په اسلام کې ځان پابندګڼینه (٤) نه **نصرانی** نه له عیسی بیرینه (٥)
بېرېږم زه چه خدای کړي قهر ښکاره د سلطنت په رڼا کـورسي تیاره»
میرخان ویل:«ای **حسین پاچا** وګوره حال د حاکـم او رعایا وګوره !
ګرګ دې ایله کړ پر رمه سو شبان جوروستم کاندي بېحد ګرګین خان
موږ له طاقت نسته چه کړو به زیاتی صبـر پـر ظلـم د ظالـم ارمنـی
دا ځلورم وار دئ راغلم سلطانه عرض د ظالم له لاسه کړم سلطانه !
که پاچا نکړي داد خواهی د مظلوم ظالم حاکم کـا ، ظلم ډېر په محکوم
جور چه ډېر سي سلطنت سي بر باد د ظلم قصر پینا ( ٦ ) بې بنیاد»

## عربیه : الملك یبقی مع الـکفر ولا یبقی مع الظلم (۸)

« کافر کولای سلطنت سي مدام کـه وکړي داد ، نه وي جابر پرانام
مګرظالم خو نسي کړای سلطنت خالق رحیم دئ ، ورکوي خلافت :
چاته؟ چه زړه ئې وي په مهرودان د خـدای عیال ګڼي پر مځکه انسان
سلطانه واوره په ښې غوږدا وینا مکړه ستم د خلق الله په هرچا [۷۲]
دستمګارو پای ورانی دی، خراب د ظلم اور ئې کـا پخپله تراب

(۱) ونه : مزید علیه (ؤ) است بمعنی « بود» که نون ترنم درآخر آن ملحق شده .

که میرخان باصفهان رفته بود　　وروی به کعبهٔ سبحان داشت
تمام پیغامهای پښتون‌را به پادشاه‌عرض کرد:　　ظلم گرگین ، و احوال بد افغان
پادشاه گفت : « که من چارهٔ ظلم　　و ستم گرگین را کرده نمیتوانم
اگر معزولش کنم قندهاررا ترك نمیکند　　جوروستم وشعارخود را نمیگذارد
گرگین گرگ است،وگرگ ظالم‌میباشد　　خون‌می‌ریزاند،وگوسفندهارامیدرد
من هم هراسانم که گرگین را چکنم ؟　　نا مسلمان **ارمنی** بیدین است
نه خود را پابند اسلام میداند　　نه **نصرانی** است،ونه ازعیسی میترسد
میترسم که خداوند قهر خود آشکارا کند　　ودرخانهٔ روشن‌شاهی تاریکی بیاید»
میر خان گفت : «ای **شاه حسین !** ببین　　حال حاکم و رعایا را !
گرگ را رها کردی، که بررمه شبان‌شد　　وگرگین‌خان‌جوروستم بیحدمینماید
ما طاقت نداریم ، که زیاده ازین :　　بر ظلم ظالم ارمنی صبر کنیم
این نوبت‌چهارم‌است که می‌آیم،ای‌سلطان!　　و از دست ظالم عرض میکنم
اگر پادشاه داد خواهی مظلوم را نکند　　حاکم‌ظالم، برمحکوم‌ظلم‌زیادمینماید
چون جورزیاد گردد،سلطنت برباد میشود　　قصرظلم بی بنیاد و پا برهواست»

## ترجمهٔ عربیه : شاهی باکفر میماند ، وبا ظلم نمی ماند

«کافرهمواره‌سلطنت کرده میتواند　　اگرانصاف کند،وبرمردم‌ظلم ننماید
ولی ظالم نمی‌تواند سلطنت کند :　　زیرا،خداوندرحیم‌است،وخلافت را:
بکسی‌میدهد که‌دلش‌به‌مهرمعمورباشد　　وانسان را برزمین ، عیال‌خدابداند
ای‌سلطان! بدقت این‌سخن را بشنو:　　بر خلق‌الله ستم مکن !
عاقبت ستمکاران خرابی است　　وآتش‌ظلم، خودشان‌را بخاك برابرمیکند

---

(٤) مزید علیه گني است بمعنی می‌شمارد ، نون مفتوح ترنم درآخر ملحق شده ٠

(٥) » » بیري » » میترسد ، » » » » »

د مظلوم آه داسې کاری وي گوره — چه اور ئې نه ځي د ظالم له کوره

لمبې به بلې کا د ظلم په کور — تړوله به کاندي بېنوا په دې اور

ښائې ظالم چه رحم وکا په ځان — په ظلم خوار نکړي خپل ځان او جهان

سلطانه ! گوره پرځان رحم وکړه — خپل کلی کور په جور مه ورانوه »

پاچا ته هسې وینا وکړه میرخان — خوغوږئې نه ؤ ، اوریدو وله پځان

گرگین ئې پر پښو قندهار کې ظالم — نه ئې کړ دفع لاس د ده له عالم

گرگ ئې شپانه کاچه کړي خوار رعیت — د گرگ په ځیر، ځیری په ظلم و وحشت

میرخان خوابدی ولاړ حجاز له چه کړي — رسول د خدای ته په زاری دادخواهی

## دادخواهی د میرخان په حضور د سیدالانس والجان

ولاړئ د شپې ئې په **یثرب** کا فریاد — رسول د خدای ته «چه سوقوم بر باد

ستا پر امت راغئ د ظلم دوران — واوره رسوله د دې قوم فغان

پښتون خو ستا پر نامه ځان کړي فدا — اې خیرالناسه ! واوره ته ئې ندا

وژغوره دوی ، ته د ظالم له لاسه — گرگین له منځه د پښتون و باسه[۷۳]

ستا په نامه دئ کلمه گویه پښتون — نـه بسې هیڅکله له تانه راستون

مرگ و ژوندون مود اسلام د پاره — ستـا د دربار ستا د سلام د پاره

مه موکړه هېر خیرالوری رسوله ! — فخر کونین نور الهدی رسوله !

اوښکې مې څاځي پر دربار یم ولاړ — قوم سو په اور د ظلم تړوله لتاړ

یو وار نظر وکړه پر موږ چه سو وړ(۱) — و ظالمانو ته تر څو به یو پړ

ستا لطف و مهر دئ شامل پر جهان — هرخراب زړه دئ ستا په مهر ودان

که ستا نظر نه وي خراب سو پښتون — په اور د ظلم تور کباب سو پښتون

راغلم له لیرې ستا دربار ته نبي — ته مې شفیع سه خدای غفار ته نبي

چه پر پښتون قوم نازل کا رحمت — کړی ئې خوندی ناموس پخپل مرحمت

آه مظلـوم چنـان کـاریست ، ببین که آتش آن ازخانمان‌ظالم‌منطفی نمیشود
درخانمان ظلم، شعله هاخواهدافروخت و باین‌آتش همه رابینوا خواهدساخت
باید ظالم بر خویشتن رحـم کنـد وخویشتن وجهان را بظلم خوارنسازد
ای‌سلطان، ببین!و بر خویشتن‌رحم کن خانمان خویش را بجور ویران‌مکن!»
میرخان بپادشاه چنین سخن گفت ولی پـادشاه گـوش شنوا نداشت
وگرگین ظالم را در قندهار ماند و دست وی را از مردم کوتاه نساخت
گرگ‌را شبان‌ساخت‌تارعیت‌راخوارسازد و بظلم و وحشت مانندگرگ بدراند
میرخان‌رنجیده‌خاطر به**حجاز**رفت، تاپیش رسول خدا زاری و داد خواهی نماید

## داد خواهی میرخان بحضور سیدالانس والجان

رفت ، وشبی به **یثرب** فریاد برآورد برسول‌خداعرض کرد: «که‌قوم‌بربادشد
بر امت تو دوران ظلم آمد ای پیغمبر ! فغان این ملت را بشنو !
پښتون خویشتن را بنامت فدا میسازد ای خیرالناس ! ندایش را هم تو بشنو
از دست ظالم : نجات شان بخش و گرگین را از بین پشتون بران
بنام تو پښتون کلمـه میگـویـد وهیچ گاه ازتو روگردان نخواهند شد
مرگ و حیات ما برای اسلام است برای سلام در بار تو زندگانی داریم
ای‌رسول‌خیرالوری!ماراافراموش مکن ای فخرکونین ! و ای نـور الهدی !
اشکم میریزد ، و بدربارتو ایستاده‌ام قومم بآتش ظلم سراسر سوخت
باری بمانگاهی‌بفرما ، تامظفر گردیم تـا بکـی پیش ظـالم ذلیل باشیم ؟
لطف و مهر تو شامل جهانست : و هر دل خراب به مهرت معمور !
اگرنظرت نباشد پښتون برباد میگردد و بآتش ظلم سوخته و کبابست
ای پیغمبر ! از دور بدربارت آمدم بحضور غفار شفیع من شو !
تارحمت‌خودرا برملت‌پښتون‌نازل‌فرماید و ناموس‌شانرا بمرحمت‌خویش نگهدارد

---

این کلمه با (وږ) به فتحهٔ اول که بمعنی مناسب ومیکروب امراض‌ساریه‌است ، مورد اشتباه نشود .

لاس د ظالم ئې له گريوانه کالنه وچ سي دظلم د گندوخيرو ډنه(١)
ستاشريعت سي ټينگ په منځ د پښتون ورك سي بيداد او کم سي رنځ د پښتون
دا مې دئ سوال ولاړ ودرته يمه محتاج دې تش ولې نظر ته يمه
د قوم حال کړم درته عرض په ادب ته يې بادار د کل عجم او عرب
بيله تا نه لري پښتون خواله گر(٢) ته يې ملهم د خوږو زړو د پرهر
وژغوره زموږ نام و ناموس له بيداد کړو بې ناموسو ظالمانو برباد[٧٤]
سر که راپورته زموږ حال و گوره د ظالم ظلم بد احوال وگوره
نه ئې له تا شرم و حيا سته نبي نه شرم کاندي له عيسی ،ارمني(٣)

عرض مې د حال و کا ، و تا ته پېشوا
بل څوك مو نسته خواله گر په دنيا»

## خوب ليدل د حاجي ميرخان په مدينه طيبه کې، او زيری د نجات له ظلمه

چه ميرخان هسې عرض کا حال د ظلم هغه شپه مات سو توره ډال د ظلم
ميرخان په خوب وليد **صديق اکبر** «رض» چه ورسره حضرت فاروق و **عمر** «رض»
وې : « سپين ږيری نور څه غم مکوه قوم دې خلاص سو کورتې ماتم مکوه
ولاړ سه خپل قوم ته دا زيری کړه ژر چه د ظالم سو کم نقصان او ضرر
پښتون به خدای کا له ظالمه آزاد نه به سي ننگه او ناموس ئې برباد
خدای به دا قوم کا په رحم ودان نوم به ئې وينه (٤) مجاهد پرجهان
تل به د خدای په بندگی کې وي لوړ څوك به ئې نکا سر په ټيټه ورځو ړ(٥)
کلمه د خدای به وي جاري په افواه ورکوي دوی به په دې لاره کې ساه
څو ئې طره وي د اسلام په بگړی(٦) نه به سي ورك نوم د دې قوم له نړی» [٧٥]

---

(١) ډنه : بفتحهٔ اول و سکون دوم و سوم ، تالاب ، حوض ، جلگهٔ سرسبز.
(٢) خواله گر: همدرد ، و غمشريك ، دوستيکه درد دل و سر خود را به وی گويند .
(٣) يعنی ارمنی از عيسی ( ع ) هم شرمې ندارد ،کلمهٔ ارمنی را بايد جدا خواند ، که

دستظالم رااز گریبانشان کوتاهسازد
تا مرداب آب گندیدهٔ ظلم خشك گردد
شریعتتودر بین پښتون استوار گردد
و بیداد و رنج از پښتون دور شود !
اینست تمنای من ، بدر تو ایستادهام
بیـــك نگـــاه تـــو محتاجم
حال قوم را بادب عرض میکنم
تو با دار کل عجم و عربی !
پښتون بدون تو همدردی ندارد
وهم تومرحم جراحتدلهای مجروحی!
نام و ناموس ما را از بیداد نگهدار
ظلمهٔ بی ناموس، ما را بر باد ساخت
سرت بردار ، و حال ما را ببین ؟
احوال بدظلم ظالم را نظر فرما
ای پیغمبر ! نه ازتوشرم و حیاییدارد
و نه ارمنی ، از عیسی میشرمد !

ای پیشوا ! بحضور تو عرض حال کردم
در دنیا دیگر همدردی نداریم ! »

## خواب دیدن حاجی میرخان در مدینه طیبه ، و مژدهٔ نجات از ظلم

چون میرخان حالظلم را چنین عرض کرد
همدران شب شمشیر و سپر ظلم شکست
میر خان **صدیق اکبر** ( رض )
وحضرت **عمرفاروق** (رض)رابخواب دید
فرمود: «ای ریشسفیدزیاده ازین اندوه مکن
قومت نجات یافت ، ماتم مکن
برو،و بملت خویشاین مژده را زود برسان
کـه نقصان و ضرر ظالم کم گردید
خداوندپښتونراازدستظالم آزادخواهدساخت
و ننگ و ناموسشان بـر بـاد نخواهد رفت
این ملتراخداوندبرحمتخود آبادانخواهدکرد
و نامشان در جهان « مجاهد »خواهد بود
همواره در بندگی خداوند برترخواهندبود
وهیچکس آنهارا سرنگونوذلیل نخواهدساخت
کلمةالله همواره بر افواه شان جاری :
و همدرین راه جـان خواهند داد
تاکه طرهٔ اسلام در دستارشان نصب باشد
نام این ملت از دنیا گم نخواهد شد »

(٤) وینه : مزید علیه ( وي )است بمعنی باشد ، که نون ترنم درآخرملحق شده ٠
(٥) ځوړ : بسکون اول و زورکی دوم ، پست ، و پائین افتاده ٠
(٦) بګړی : بفتحهٔ اول و سکون دوم ، دستار ٠

## زېرى او ربدل دميرخان او فتوا اخستل له علماؤ

دازېرى(١)واوربدل ميرويس خان په منام
خوښ سو د هغو په سپېڅلى كلام

بيا ئې پيدا كړل علماء د حرم
مفتي ، قاضي ، او هم پېشوا د حرم

حال ئې د ظلم د گرگين كا بيان
فتوا ئې وغوښته له دويه مير خان

ټول علماء د دين فتوا ئې وكړه
هسې تحرير ، هسې انشاء ئې وكړه :

« چه د ظالم د ظلم رفع روا
په تېر چه وي دى له اسلامه سوا »

حاجي مير خان راغى وطن ته بل كال
قوم ئې وليدئ په ظلم پايمال

په تدبير كښېوت ، چه ناموس وساتي
ننگه د قوم كا په ټينگنه خوندي

مشران ئې وليدل د قوم په سلا ( ٢ )
وددوى تې (٣) ووې (٤) د حرم ماجرا

دعا او خوب او هم فتوا د عرب
قوم ئې كا د ځان د ښو په طلب

گرگين خبر سو چه ميرخان څه كوي ؟
وئې كتله چه افغان څه كوي

ظلم ئې ډېر كا پرخوارانو د قوم
ځان ئې كا گرگ د غم خوارانو د قوم

مشران ئې راوستل په حبس و په بند
منافقين يې كړل په قوم سر بلند [٧٦]

## مصلحت د ميرخان، او قرآن كول د قوم او بيا وژل د گرگين خان

حاجى مير خان و كا تدبير مصلحت
ښتانه ټول سول په ناموس او په پت

ټولو قرآن و كا چه ځان كا خوندي
له جور و ظلمه د ظالم ارمني

**سيدال ناصر** ، او بابوجان و بابى
بل **بادر خان**(٥) و د بادرو لمسى

مياجى(٦) هم راغى ، دميرخان په كمك
**يوسف** (٧)راټول كړله دسيورى هوتك

---

(١) در نسخهٔ اصل بعد از زېرى كلمهٔ «چه» هم آمده، ولى ازحيث بحر و وزن زايد بنظر آمد بنابران ساقط شد .

(٢) سلا : مشورت ، كنگاش ، شورا .

(٣) تې : مخفف ته ئې است .

(٤) ووې : گفت، كه اكنون وويل گوئيم، حاشيهٔ ٤ ص ١٢٥ را بخوانيد .

(٥) شرح حال بهادرخان در ص ١٢٦ و سيدال خان در ص ١٧٠ و بابوجان در ١٣٤ بخوانيد.

## مژده شنیدن میرخان ، و گرفتن فتوای علماء

میرویس‌خان این مژده رادرعالم‌خواب‌شنید
و از کلام پاکیزهٔ آنها خوش گردید
بعد ازان علمای حرم را در یافت
مفتی ، قاضی ، و پیشوای حرم :
حال ظلم گرگین را بیان کرد
و از آنها فتوا خواست
تمام علمای دین فتوا دادند
و چنین تحریر و انشا کردند :
«که دفع ظلم ظالم جایز است
علی‌الخصوص که سوای اسلام باشد »
حاجی میرخان سال دیگر بوطن آمد
و ملتش را در ظلم پایمال دید
بتدبیر افتاد ، که ناموس را نگهدارد
و عزت ملت را خوب حفظ کند
بزرگان ملت را بمشورت خواست
و ماجرای حرم را به ایشان گفت
دعا و رویا ، و هم فتوای عرب
و ملت را بطلب بهبود دعوت کرد
گرگین‌مطلع‌شد، که‌میرخان‌چه میکند؟
و دید که افغان چه میکند ؟
ظلم‌خودرا بر بیچارگان‌ملت افزون کرد
وبرای‌غم‌خواران‌ملت‌خویشتن‌را گرگ‌ساخت
بزرگان را در حبس و بند انداخت
و منافقین را در بین ملت سربلند کرد

## مصلحت میرخان ، و حلف بقرآن ، و بعد ازان قتل گرگین خان

حاجی میرخان تدبیر و مصلحت کرد
و پښتونها بغیرت‌و ناموس فراهم‌آمدند
همه بقرآن‌حلف کردند، که خود را از
جور و ستم ارمنی ظالم نگهدارند
**سیدال ناصر** ، و بابو جان بابی
و **بهادر خان** زادهٔ دلاوران
میاجی هم بمدد میرخان آمد
**یوسف** هم هوتك سیوری را فراهم آورد

---

(٦) میاجی ، همان ملاپیر محمد است ، که شرح حال وی درص (۱۳۰) آمده (ر:۵۳)

(۷) یوسف : از این شخص که از همراهان قدیم مرحوم حاجی میرویس خان بود ، در مراجعیکه اکنون دردست است‌نام‌برده نشده ، تاریخ سلطانی و خورشید جهان وحیات‌افغانی نامی از دیگران در حوادث دورهٔ هوتکی برده‌اند ، ولی یوسف جز این کتاب در دیگر جای بنظر نرسید ۰

عزيز نورزی (۱) د دلارام پهلوان
راغی نصرو الکوزی د جلدك (٤)
بل يحيی خانؤ بل ئې زوی محمدخان(٥)
يونس کاکړ(٦) وکا يرغل په گرگين
گرگين ئې مړ کا ټول گرجي سو کشتار
قندهار ونيو حاجی مير په همت
«چه ظالم ومړ اوس خوموږ سوو آزاد
پاچاظالم دئ موږ بې(۷) لوټ کا لښکر
اصفهان ډك ؤ ، له لښکرو د شاه
نه به پښتون پرېږ دي پر مخ د جهان
دښمن قوي دئ راسئ کئ اتفاق
په قندهار کې ئې راټول کړل خانان
هر قوم ور کړله ځوانان توريالی
شل زره جمع سول په منځ کې دښار
ميرخان انصاف کا ؤ سپين ږيری مشر
چه داسې کار وکا حاجي گړندی (۱۰)

گل خان بابړ (۲) وبلؤ نور برېڅ خان(۳)
کا ئي ځوانانو د لښکر و کومك
ټول سره يوسول چه کړي مړ گرگين خان
پښتنو جوړ پر گرجيانو ناورين
قوم کـا خلاص له ظلم وجوره غفار
قوم ئې ټول کا ، ورتې کړ نصيحت :
خالق دي نکا پښتون قوم برباد
ښايي چه وساتو ځانونه له شر [۷۷]
سبا به راسي په زرگونو سپاه
ورك به کا نوم ، ننگه ، نښان د افغان
ځان موچمتو کې ليری کاندئ نفاق(۸)»
ټوله د قوم اختيار داره مشران
ټول ؤ غښتلی ننگيالی ، جنگيالی
گرده ولاړ ؤ د ميرخان په گفتار
قوم ئې و نه (۹) لکه زوی او کشر
د پښتنو ناموس ئې وکا خوندی

(۱،۲،۳،٤) راجع به عزيزخان نورزی ، و گل خان قوم بابړ ، و نور خان برېڅ ، و نصرو خان الکوزی جلدك ، در مراجع ديگر چيزی نيافتم .

(٥) اين يحيی خان برادرحاجی ميرويس خانست، محمد خان برادرزادهٔ حاجی ميرويس خان علاوه بر آنکه در جهاد آزادی با پدر و عمش همراه بود ، دروقايع ما بعد بنام حاجی انگو شهرت زيادی دارد ، که مدتها درحدود جغتران حکمرانی داشت . و عبدالغفورخان پسرش درحين هجوم نادرافشار بر کلات قابض بود ،وعبدالرسول خان برادرعبدالغفور بمقابلهٔ نادرشاه مردانگی ها کرد ، و در موضع شيبار با وی درآويخت(حيات افغانی ص۲۵۷ ـ ۲٦٤).

(٦) نام يونس خان هم در مراجع ديگر نيامده ، سلطانی و خورشيدجهان متفقند، که گرگين خان بعزم تنبيه طايفهٔ کاکړ به ده شيخ ارغسان رفته بود ، و ازينجا بر می آيد ،

**عزیز نورزی** پهلوان **دلارام**　　و**گل خان بابړ**،ودیگر هم **نورخان** برېڅ
**نصرو الکوزی جلدك** آمد　　و جوانان وی کمك لشکر را مینمود
دیگر**یحیی خان**،ودیگرپسرش**محمدخان**بود　　همه با هم فراهم آمدند که گرگینخانرا بکشند
**یونس کاکړ** بر گرگین هجوم آورد　　وپښتونها بر گرجی ها مصیبت فروآوردند
گرگین‌را کشتندوتمام گرجی‌را کشتار نمودند　　خدای غفار ملت را از ظلم و جور رهانید
حاجی **میر** به همت خود قندهار را گرفت　　ملت را فراهم آورد و به آنها پند داد :
«که ظالم کشته شد ، وحالا ما آزادشدیم　　خداوند ملت پښتون را بر باد نکناد
چون پادشاه ظالمست لشکرش ماراخواهدچاپید　　شاید که خود را از شرش نگهداریم
اصفهان از لشکر شاه پر بود　　و فردا هزارها سپاه خواهد آمد
نه پښتون را بر روی جهان خواهد ماند　　و نام و نشان افغان را از بین خواهند برداشت
دشمن قویست بیائید و اتفاق کنید　　خویشتن را مهیـا ، و نفاق را دور سازید »
خوانین را در قندهار فراهم آورد　　اختیار داران و بزرگان ملت :
هر قوم جوانان شمشیری را داد　　که همه نیرومند وبا همت و جنگـی بـودند
بیست هزار نفر در بین شهر جمع شدند　　و همه برگفتار **میرخان** استوار بودند
میرخان انصاف کرد، ومشرریش سپیدی بود　　ملتش بمنزلت فرزند و خورد بود
چون حاجی راد چنین کاری را کرد　　وناموس پښتونها را حفاظت نمـود

---

که مشر این حرکت آزادیخواهانه که کاکړها کرده بودند ، یونس خان بود .

(۷) بې مخفف به ئې است .

(۸) چمتو درین بیت بمعنی مهیا و آماده است ، و«کاندئ» جمـع امـر حاضر است که «کړئ»هم گوئیم، بمعنی بکنید،و «کاندئ» درادب پښتو،و برخی ازمحاوره‌هاهم مستعمل است.

(۹) ونه : مزید علیه (وُ) است بمعنی بود ، نون ترنم درآخرآن ملحق شده .

(۱۰) گړندی : بفتحتین وفتحهٔ دال ، بمعنی فعال وجدی وکارکن و هم دستگیرروحانی و ممد معنویست .

کال ۇ يوسل نونس او زرپه شمار خلاص سو له ظلمه د گرگين قندهار
د ظلم پای دئ هسې وران عالمه نه دئ په ظلم څوك ودان عالمه !
د ظلم اور چه بل سي سوځي جهان پکښې کبـاب سي ستمگر ظالمان
ظالم جفا کوي پر ځان نه په بل :
وينيهرڅوكسزا د خپل بد عمل[۷۸]

# « ۳۵ » ذکر د عالم کامل ملا محمد عادل بړيڅ

دا ملاصاحب په قوم بړيڅاوعالماومتورعسړیدئ،خلقوله لاربنوونه کا ، په**شوراوك** کې اوسي، اوطالبانوتهدرس کا،د ده پلار**ملامحمدفاضل**هم ښه ملا ۇ،چه« **روضهٔ ربانی** » کتاب ئې کښلی ۇ، **ملا محمد عادل**،هميو کتاب نظم کړی دئ ، چه «**محاسن الصلوة**» ئې نوم دئ ، او د لمانځه مسایل اوثوابونه ، اودتارکینوعذابونه ئې پکښې کښلی دی ، دایوڅو بيتونه له هغه کتابه دلته را نقل کوم ، چه يادگار وي :

بیت

هغه خلق عـاصيـان دي چه په فرض کې کهالان (۱) دي
چه فرض نه کاندي له قصده دوی بې شکه کافران دي
چه وای(۲) کړم ئې زده ئې نهوي که طعام خوري حيوانان دي
علم فرض پر هر سړی دئ چه فرض نکـا څه کسان دي
چه په قصد يو لمونځ قضا کـا په دوزخ کې فاسقان دي
خدا په تا زه امان غواړم له هغو چه فاخران دي
له هغو سره مې گډ کا :
چه خاصه ايمانداران دي [ ۷۹ ]

(۱) کهال : در پښتو مستعمل و بمعنی تنبل وکاهل است که جمع آن کهالان می آید.

سال يك هزارو صدو نزده بود — که قندهار از ظلم گرگین رهائی یافت
ای مردم ! عاقبت ظلم چنین خرابست — به ظلم هیچ جائی معمور نشده
وقتیکه آتش‌ستم‌درگیرد‌جهانرامیسوزاند — و ستمگران ظالم دران کباب میشوند

ظالم بر خویشتن ستم میکند نه بر دیگری
هرکس سزای عمل خویش را می‌بیند !

## «۳۵» ذکر عالم کامل ملا محمد عادل برېڅ

این‌ملاصاحب‌ازقوم برېڅ،وشخص‌عالم‌ومتورعی‌است، که بمردم‌هدایت‌میکند،در**شوراوك** حیات میگذراند ؛و به‌طلبه‌درس میدهد ، پدرش**ملامحمد فاضل**هم‌ملای خوبی بود ۰ که کتاب «**روضهٔ‌ربانی**» رانوشته بود۰**ملامحمدعادل** نیز کتابی‌رانظم کرده‌است که«**محاسن‌الصلوة**» نامدارد ، ودران مسائل نمازوثواب‌های‌آن ،و عذابهای تارکین را نگاشته است ۰این‌چندبیت را ازان‌کتاب نقل میکنم، تا یادگار باشد۰

بیت

همان کسان عاصیانند — که در فرض کاهل انـد
اگر قصداً فرض را ترك کنند — بدون شك کافر اند
اگربگوید که‌میکنم‌ویادنداشته‌باشند — اگر چه طعام خورند حیوانند
علم بر هر شخص فرض است — کسانیکه فرض‌رااداء **نکنند**چه‌اند؟
اگر قصداً نمازی را قضا کند — فاسقانند و در دوزخ خواهند بود
خدایا ! بتو پناه میجویم : — از آنهائیکه فاخرانند

با همان کسان مرا بیامیز
که ایمانداران خاص اند

---

(۲) وای : مخفف همان وايي ( میگوید ) است ، فعل حال از مصدر ويل :

# « ۳٦ » ذکر د شاعر شاطر محمد طاهر جمریانی

د**محمدعلی جمریانی** زوی دئ، په قندهار دکانداری کا، **دښکاپور** (۱) سوداگری لري، او هلته ځي، خوش طبع ځوان دئ، طبع ئې هزل ته مایله (۲) ده، او کله کله ښه اشعار هم وايي، په کلو کلو په **مستنگ** (۳) کې د پلاره سره او سیدلئ، او هلته ئې له اکملو علماؤ څخه لوست وکا، او علوم دیني ئې زده کړل، د کاتب الحروف سره آشنايي لري، دکان ئې د فاضلانو عالمانو مجلس گاه وي، د يارانو سره خوش طبعي او ظرافت کا. هسې وايي: کاتب الحروف محمد هوتك: چه یوه ورځ ئې یو یار د کان ته راغئ، چه نوم ئې دئ، **محمد عمرخان** په قوم لوڼ (٤) گانه سي، په مقتضاد طبع لطیف له شاعرانو سره آشنائې کا او پخپله هم اشعار انشاء کا.

محمدعمرخان له **محمدطاهر** سره ظرافت کا، او لطیفه نکات یو بل ته سره وايي. محمدعمر وویل: لس کاله د محمدطاهر سره په مجلس او وینایم، خو هېڅ اثر د مجلس نه لیدل کېږي او نه د الصحبة مؤثر مصداق ښکاره کېږي، په سبیل د هزل ئې دا قطعه په مجلس کې وویله: «۳۷».

## قطعه

وايي دا چه صحبت کاندي یو له بله ډېر اثر
په کلـو دې مصاحب سوم ستا صحبت نکړمه خر

محمدطاهر چه طبع ظرافت پسند لري، او هسې نکات ښه اداء کا، هسې قطعه ئې په جواب انشاء کا [۸۰].

## قطعهٔ جوابیه

صحبت ډېر اثر کاگوره منکـر نسې د اثر
ته دمخه هغه شی وې اوس انسان سولـې بشر

(۱) ښکاپور: تلفظ پښتوی همان ښکارپور واقع در سند است، که تجارت قندهار از آن راه جریان داشت
(۲) اصل: مایل، ولی چون طبع اکنون مؤنث مستعمل است، صفت آن هم مایله مؤنث نوشته شد

## « ۳۶ » ذکر شاعر شاطر محمد طاهر جمریانی

پسر **محمد علی جمریانی** است ، در قندهار دکانداری میکند و تجارت **شکارپور** دارد بدانجا میرود ، جوان خوش طبعی است ، و طبعش بهزل مایل است، گاه گاهی اشعار جد هم میگوید ، سالها **در مستنگ** با پدرش زندگانی داشته ، و درآنجا از علمای اکمل درس خواند و علوم دینی را آموخت . با کاتب الحروف آشنایی دارد ، دکانش مجلس فضلاء و علماء است ، با یاران خوش طبعیها و ظرافت کند . چنین گوید کاتب الحروف محمد هوتك : که روزی یکی از یارانش بدکان وی آمد که نام او **محمدعمرخان** بقوم لونی است این شخص به مقتضای طبع لطیف با شعراء آشنائی دارد ، و خودش هم شعر انشاء میکند .

محمد عمرخان با **محمدطاهر** ظرافت کند، و بیك دیگر نکات لطیفه گویند، محمدعمر گفت : ده سال با محمد طاهر درمجلس وسخن هستم، ولی اثر مجلس هیچ دیده نمیشود و نه مصداق «الصحبة مؤثر» آشکارا میگردد ، و بر سبیل هزل این قطعه را در مجلس خواند : «۳۷».

### قطعه

میگویند که صحبت بر یك دیگر اثر زیاد دارد
سالها با تو صحبت کردم ولی صحبتت مرا خر نساخت

محمد طاهر که طبع ظرافت پسندی دارد، و چنین نکات را خوب اداء میکند ، درجواب چنین قطعه انشاء کرد :

### قطعهٔ جوابیه

صحبت اثر زیادی دارد ببین ! تا منکر اثر نشوی
تو پیشتر همان چیز بودی ! اکنون انسان و بشر شدی!

---

(۳) مستنگ : از بلاد معروف تاریخی است ، که اکنون در بلوچستان موجوده بصورت قصبه‌ای افتاده ، یاقوت آنرا بصورت معرب مستنج ضبط کرده و گوید که بین مستنج و بست شرقاً هفت روزه راه است( مراصد ص ۳٦۹ ). گردیزی گوید : که سلطان محمود شار شاه غرجستان را بند کرد و بشهر مستنگ فرستاد ( زین الاخبار ـ ص ٥٦ ).

محمد عمرخان په ظرافت لهمحمد طاهره پوښتنه، کا ، چه ستا نوم طاهر دئ خو مطهر نهدئ.
محمد عمر هسې بيت ووايه :

بيت

خو و تاته مطهر وځان و ته طاهريم


والعلماء ... 
سيف الدين لودين كتابتون
كتاب پر لپسي شمېره

## «۳۸» ذکر د عاشق پاکباز دانای راز ملا محمد اياز نيازی

د دنيا تارك دئ ، اوپه زهد اوورع کې رياضتکا ، اوپه طريقت کې مريد دئد **ميان عبدالحکيم قدس سره العزيز**(۱) که څههم په اصل د قندهار د ښارساکن دئ،مگر پهمياشتو ورك وي له کوره او سياحت کا ، او پهحضوردبزرگانوحاضرېږي ، او په گوښو کې پهعبادت بخت دئ . نقلکاچه **ملامحمد اياز** په شپو شپو ويښ وياوپردښتواوغرو گرزي، ذکرکاندي او که د خپل پيردستگيرپرمخ راسي ژړاکا،اوهسې وېناکا :«چه تاب د مظاهرودجمالاو کمال نلرمځکه نو تښتم.» ملا محمد ايازښهآوازلري اوکله کله چه خپلاشعارپه غنا سرهلولي،خلق ژړوياوديوانداشعاروئې دېرمتين دئ اونکاتعارفانه پکښسته،هسيروايتکا:چهملامحمد اياز اکثر[۸۱] پهغرو کې گرزي او د غرو وحشی اوخونخوارحيوانات ده ته ضررنهرسوي ،**ملا عبدالحليم**چهدده شاگرددئ هسې وايي :«څو مياشتې مېاستاد نه راغئ کورته،اوزهدده په تلاښ گرزېدم په غرو کې ، يوځای مي وليدل د شرمښانو لوگله چه گرزي اويودبلهمنگولی سره اچوي،ماځان پټکا او په غره کې پنهان سوم ، چه شرمښان ولاړل هغه ځای ته ورغلم اوهلته مې محمد ايازوموند ، چه په درانه خوب بيده ؤ،اوهغو وحشی حيواناتوهېڅ ضررنهؤ وررسولی بلکه ويښسویهم نه ؤ» ماچهله خوبه ويښکا او واقعه مې ورته بيانکا،دهوويل:

« هغه زړه چه د خدای په محبت

---

(۱)ميانعبدالحکيمکاکړازمشاهيراولياءوعرفایافغاناست . کهدرطريقت شهرهٔ آفاق بوده

محمدعمرخان در ظرافت ازمحمدطاهر پرسید ، که نامت طاهراست،اما مطهر نیست‌محمدعمر ایق بیت گفت :

بیت

من نسبت بخویش طاهرم اما بتو مطهرم

## « ۳۸ » ذکر عاشق پاکباز دانای راز ملا محمد ایاز نیازی

تارك دنیاست،ودرزهدوورع‌ریاضت‌میکند،ودرطریقت‌مرید **میان عبدالحکیم‌قدس سره‌العزیز** است . اگرچه اصلاً ساکن شهر قندهار است ، ولی ماهها از خانه دور میباشد وسیاحت میکند ، وبحضور بزرگان حاضرمیشود ، ودرگوشه‌ها بعبادت مشغول میباشد . نقل کنند : که **ملامحمدایاز**شبها بیدارمیباشد ودردشتها وکوهها میگردد ، ذکرمیکند، واگر بحضور مرشد دستگیر خود آید میگرید و چنین گوید :« که تاب مظاهرجمال و کمال‌ندارم، بنابران میگریزم. » ملا محمد ایازآواز خوبی دارد ، اوگاه‌گاهی اشعار خویش را تغنی میکند ، و مردم را میگریاند ، دیوان اشعارش نهایت متین است، ونکات عارفانهٔ دارد چنین روایت کنند : که ملامحمد ایازاکثراً درکوهها میگردد ، وحیوانات خونخوار ووحشی کوهها به وی ضرری نمیرساند ،**ملا عبدالحلیم** که شاگرد اوست چنین گوید :« که استادم چندین ماه بخانه نیامد ، وبتلاش‌وی‌درکوهها میگشتم ، جائی دیدم که گله گرگهاست، وبه یکدیگر حمله میکنند ، من خود را پنهان ساختم،و درکوه نا پدیدگردیدم،چون گرگها رفتند، به‌آنجا رفتم ودرآنجا محمد ایاز را یافتم ، که بخواب سنگینی فرو رفته، وآن‌حیوانات‌وحشی به وی هیچ ضرری نرسانیده‌اند ، بلکه بیدار هم نشده من چون ازخواب بیدارش کردم.وواقعه‌را به وی بیان نمودم گفت : « دلیکه به محبت خدا

---

(۱۱۵۰هـ) از قندهار به کاکرستان رفت ، و مزار وی در موضع تل وچتالی است که اکنون هم زیارتگاه عامه است .

ودان وي ، د حيوانانو په غاښو، نه ورانېږي، د حقيقي انسانيت مرتبه هسې هسکه ده، چه د حيوانيت لاس هلته نه رسي، اولکه نفس اماره چه د نفس مطمئنه(۱) څخه تښتي ، اوفاني کېږي، هغسې هم د حيوانيت په درياب کې لاهو مخلوقات د انسانيت سره جگړه نسي کړای ، او له پرتمه يې تښتي . »

ملا محمد اياز د شعر غونډ ديوان لري، اوډېر ښه عارفانه اشعار ئې پکښې جمع کړی دی، چه زه ئې دغه يو څو رباعي په بيان د عارفانه نکاتو را نقل کاندم :

رباعی

زړه هغه دی چه لري د عرفان برخه | دغه ښه ده پر دنيا د انسان برخه
هغه زړه چه نه ئې مهر نه عرفان وي | ړې په ژوند کې د نا څيز ه حيوان برخه [۸۲]

وله

محبت د آب و خاك دی بې بنياد | راسه څکړې د دنياخونه آباد ؟
که دې زړه سپين وي د خدای له محبته | پر صحرا به يې بې کوره اوره ښاد

وله

زړونه خوښ کړه دا نيکی ده درښتيا | مکړه چا باندې تېرنه(۲) په جفا
د خدای کور مه و رانوه په ستمو | د خدای کورو گڼه زړه چه وي صفا

وله

چه دلځان په غم اخته وي عاشق ندی | هغه څوك د خدای د مينې لايق ندی
يا به ځان يا به جانان کا پرستنه(۳) | څوك چه ځان ئې نکاهېر، خوصادق ندی

(۱) نفس درلغت عرب بمعنی روح ، خون ، جسد ، وشخص انسان و غيره است(المنجد) اخلاقيون آنرا به نفس شهوی و غضبی و ناطقه تقسيم ، ولی متصوفه به سه قسم مشهورذيل بخش کرده اند : اول نفس اماره يعنی بسيار امر کننده به لذات و حظوظ که به طبيعت بدنی ميل کند و به لذات و شهوات حسی امر دهد ، و مرکز سرور و منبع اخلاق ذميمه است ، خداوند تعالی فرمايد : ان النفس لامارة بالسوء .

دوم نفس لوامه يعنی بسيار ملامت کننده که بنورقلب روشن است واگر خطائی ازوی سرزند ، خود راتلويم ميکند . سوم نفس مطمئنه که بصورت اتم بنور قلب منور و از تمام

معمور باشد ، به دندان حیوانات خراب نمیشود، مرتبهٔ انسانیت حقیقی چنان بلنداست، که دست حیوانیت بدانجا نمیرسد ، همانطوریکه نفس اماره از نفس مطمئنه میگریزد وفانی میشود همینطور مخلوقاتیکه بدریای حیوانیت ، فرورفته‌اند، با انسانیت نمیتوانند جنگید و ازشکوه انسانیت میگریزند ».

ملا محمد ایازدیوان مرتب اشعار دارد ، واشعارخوب عارفانه دران جمع کرده‌است، که من این چند رباعی وی را دربیان نکات عارفانه نقل میکنم .

## رباعی

دل همانست که بهره‌ای ازعرفان داشته باشد همین بهره در دنیا برای انسان خوبست
همان دلیکه نه مهر و نه عرفان دارد در حیات حصهٔ حیوان ناچیزی را دارد

## وله

محبت آب و خاك بی بنیاد است بیا خانهٔ دنیا را برای چه تعمیر میکنی؟
اگر دلت به محبت خدا روشن باشد در صحرا، بی‌خانمان شاد خواهی بود

## وله

دلهارا شاد نگهدار، که نیکی حقیقی همین است بر کسی تجاوز به جفا مکن !
خانهٔ خدا را به ستم ویران مساز ! دلیکه صفا باشد آنرا خانهٔ خدا بشمار

## وله

کسیکه به غم شخص خود مشغول باشد عاشق نیست آنچنان شخص لایق محبت خداوند نیست
یا باید پرستش خود را بکند یا پرستش جانان کسیکه خود را فرامش نساخت صادق نیست

---

ذمایم واخلاق بدفارغ و به نیکیها متحلی است،این نفس باطمینان وقرب الهی فایز میباشد و طرف خطاب یا ایتها النفس المطمئنة ارجعی الی ربك راضیة ـ مرضیه‌است. ( اقتباس از تعریفات علامه سید شریف : فلسفة الاخلاق شیخ محی الدین بن العربی و غیره ).

(۲) تیرنه : تجاوز ، و تعدی ، از مادهٔ تیر ساخته‌شده ( حاشیه۱۳ص٥٤ راپخوانید ).

(۳) پرستنه : به زورکی اول و دوم و سکون سوم ، پرستش .

## « ۳۹ » ذکر د لوی واعظ ملا محمد حافظ بارکزی

دا عالم د **محمد اکبر بارکزی** زوی دئ، چه په قندهار په کښته خوا(۱) کې اوسي اوعلوم مروجه ئې لوستی دئ ، فقه کې استاد دئ، اوپه جامعگانو کې د جمعې په ورځ وعظ کا، نو په «واعظ» مشهور سوی دئ ،کله کله په خطبه کې خپل اشعارهم وایي ، چه ټول نصیحت دي . یو کتاب ئې کښلی دئ،چه نوم ئې دئ «**تحفهٔ واعظ**» اوپه دې کتاب ئې د تقوا اوزهدوعظونه کښلي ، او خلقو ته ئې امر په معروف او نهی منکر کړی دئ .

**محمدحافظ واعظ** په رشتیاو یلو مشهوردئ،او[۸۳] د پادشاه اولو یانو په مخ کې هم دخدای امر ښکاره وایي ، او له چا پروا نه کوي، په طریقت کې د**میان، نورمحمد صاحب**(۲) مرید دئ ، اوتدریس کا ، دا حکامو د فقه په قندهار کې . طالبان د علوم ئې له مجلسه فیض مومي، اوپه حلقه د تدریس ئې حاضر وي، دا وعظیه بدله ما راواخیسته اونقل مې کړه له «تحفهٔ واعظ» څخه ، چه مسلمانان ئې ولولي :

### بدله وعظیه

| | |
|---|---|
| کم بخته مکړه پر دنیاډونگونه(۳) | که دې زړه غواړي د جنت گلونه |

☆☆☆

| | |
|---|---|
| کم بخته ! موړ یو مېلمانه پر دنیا | وطن موبل دئ آخر ځو په رشتیا |
| هم به ښه بد سي را معلوم په عقبا | نوله سره اورکې په امان ځانونه |

☆☆☆

| | |
|---|---|
| کم بخته ! مکوه حرام چه بد دئ | چه کړي حرام هغه باطن کې دد دئ |
| اعمال ئې ټوله په عقبا کې رد دی | په لویه ورځ(٤) به ئې وي تورمخونه |

☆☆☆

---

(۱) کښته خوا: یعنی طرف پائین،چون مجرای ترنك بطرف جنوب قندهار وسطح نسبتاً پائین تر است بنابران آنجا را کښته خوا گفته و مسکن بارکزی هاست .

(۲) میان نورمحمد: ازقوم نورزی یکی ازمشاهیرعرفاء قندهاراست ، که ازمیان عبدالحکیم معروف (ص۱۵٤ دیده شود) استفاضه کرد ، و در عصراعلیحضرت احمد شاه بابا حیات داشت اومرشد عمومی شمرده میشد بسال(۱۱۷۲هـ) ازجهان رفت ودرقریهٔ مناره طرف جنوب قندهار

## « ۳۹ » ذکر واعظ بزرگ ملا محمد حافظ بارکزی

این عالم **فرزند محمد اکبر بارکزی** است، که بطرف پائین قندهار سکونت دارد، وعلوم مروجه را تحصیل کرده ، در فقه استاد است ، و در جوامع بروز جمعه وعظ میکند، بنابران به **واعظ** مشهور شده است ، کتابی را نوشته که نام آن «**تحفهٔ واعظ**» است، ودرین کتاب مواعظ تقوی و زهد را نوشته ، و بمردم امر بمعروف ونهی منکر کرده است .

**محمد حافظ واعظ** به راستگوئی مشهور است، و بحضور پادشاه و بزرگان هم امر خداوندی را علانیتاً میگوید ، و از کسی پروا ندارد ، درطریقت مرید **میان نورمحمد صاحب** است وتدریس احکام فقه را درقندهار میکند ، وطلبهٔ علم از مجلس وی فیض می برند ، ودرحلقهٔ تدریس وی حاضر میباشند ، این بدله وعظیه را من از تحفهٔ واعظ نقل کردم تا مسلمانان آنرا بخوانند :

### بدلهٔ وعظیه

ای کمبخت ! در دنیا غرور مکن — اگر گلهای بهشت آرزو داری

☆☆☆

ای کمبخت ! ما در دنیا مهمانیم — وطن ما دیگراست، وآخر میرویم
خوب و بد درعقبی بما معلوم خواهد شد — پس از آتش سوزان خود را نجات دهید

☆☆☆

ای کمبخت! نا روا مکن که بد است — کسانیکه نارو امیکند در باطن ددانند
همهٔ اعمال شان در آخرت رد است — بروز قیامت روی های شان سیاه خواهد بود

---

مدفونست ، ومزارشان تاکنون مرجع عامه است، جناب مرحوم دارای تألیفات زیادیست ازآنجمله (مقالهٔ عالیه ) است در تصوف ، کـه یکـی از علمای معروف آنعصر مـرحـوم ملا احمد قندهاری شرحی بنام« تعلیم السلوك» بران نگاشت .

(۳) چونگونه : غرور، تمسخر، واستهزاء .

کم بخته ! مکوه حرص ، قرار سه        ثنا د رب کوه صبور په کارسه
توښه د دین وړه په دې کاروبارسه        چه بې توښې نسي پیدا سودونه

☆☆☆

کم بخته ! مه څه د حرام پرلوری        خدای به وتاته په غضب و گوري
که دې زړه غواړي ښایسته ښې حوری        ښځایه مرده بې پروا پلونه [۸٤]

# « ٤۰ » ذکر د نصرالدین خان انډ

**نصیرالدین خان** د **محمدزمان خان** زوی دئ، چه په زمانه کې د پادشاه جمجاه شاه حسین، له غزنی راغئ ، اوپه قندهار ساکن سو ، په مقتضا دطبع صافی په خدمت دصدر دوران بهادرخان ورسېد ، او په سلك د ملازمانو د پادشاه ظل الله منسلك سو، ځکه چه شجاعت او بهادری ئی په طینت کې وه ، نو په لږ ورځو ئې پادشاه او بهادرخان عالیشان له خوا عزت وموند ، او د مستقیم طبعانو سره آشنا سو ، نصرالدین خان انډښه اشعار وائي ، اوزموږ د زمانې له موزونانو څخه گاڼه سي ، دیوان د اشعارو لري ، او « نصر » تخلص کا ، الحق چه نصر په رزم او بزم د نصر خاوند دئ ، او د یارانو او موزونانو په منځ کی مقبول . په دې کتاب د ده یوه بدله په یادگار کاږم ، چه خزانه د ده له یاده خالي نه وي .

## بدله د نصرالدین خان

د خوار عاشق ژړا مدام وي دا څه کار دي نا(۱)
کـه وي په پټه خوله ، همدغه ئی گفتار دي نا

دخوارعاشق مدعا دا ده که ژرا کي نا:        چه ورښکاره خپله(۲) زبیامخ دلربا کي نا
پخپل وصال که ئې خوشحالهٔ محبوبا کي نا        بل څه نه غواړي همد دغه امیدوار دي نا

☆☆☆

(۱) دي نا : مزید علیه (دئ) بمعنی هست است، « نا » هم مانند « نه » است که برای ترنم در آخر افعال پښتو مخصوصاً در اواخر اشعار ملحق می شود، ودر بن شعر زیاد آمده ،واین الحاق نون

ای کمبخت ! حرص مکن ، آرام باش — خدا را ثنا کن ، و درکار صبور باش
توشهٔ‌دین‌رابا خود ببر، وبهمین‌کاروبارمشغول باش — که بدون‌توشه ، سودی بدست‌نمی‌آید



ای کمبخت! بسوی حرام میل مکن — خدا ترا بنگاه غضب خواهد دید
اگــر دلــت حور زیبـا میخواهد — پس بیجا و بی پروا قدم مگذار

## « ۴۰ » ذکر نصرالدین خان اندړ

**نصرالدین خان** ولد **محمد زمان** است ، که درعصر پادشاه جمجاه‌شاه حسین ازغزنی‌آمد، و در قندهار ساکن گردید ، و به مقتضای طبع صاف ، بخدمت صدردوران بهادرخان رسید، و در سلك ملازمان پادشاه ظل‌الله منسلك گردید ·

چون شجاعت و دلاوری در طینت وی بود، بنابران در روزهای کم ازطرف پادشاه وبهادرخان عالیشان ، عزت یافت ، وبا مستقیم طبعان آشنا گردید ، نصرالدین‌خان اندړ اشعار خوبی‌گوید ، و از موزونان زمان ما شمرده می‌شود ، دیوان اشعار دارد و« **نصر** » تخلص میکند ، الحق که نصر در رزم و بزم صاحب نصر است ، و در بین یاران و موزونان مقبول·

درین کتاب یك بدلهٔ وی را بیادگار مینویسم ، که خزانه از یادش خالی نباشد ·

## بدلهٔ نصرالدین خان

عاشق بیچاره همواره میگرید ، این چه‌کار است ؟
اگر خامش باشد ، همین گفتار ویست ! ···

عاشق بیچاره اگرمیگریدمقصدش‌اینست — که دلربایش‌روی‌زیبای‌خودرا بوی‌بنماید
محبوبه‌وی را بوصال‌خویش‌شادمان‌سازد — چیزدیگری نمیخواهد ،امیدوارهمین‌است

---

ترنم از خواص اشعار قدیم و ملی خالص است ·

(۲) خیله : یعنی بخیله، خود و باختیار خود ، «ب»مفتوحه بضرورت شعری افتاده ·

د دې مینو په زړه خدای بل کړه اورونه دي چه ورته ښېښې دي خواری سده ډېر غمونه دي [۸۵]
نور به آرام په درسته شپه کاندي خوبونه دي پر مینانو هره شپه د غم ناتار (۱) دي نا

☆☆☆

د دې مینو پر زړه رب ایښي داغونه دي چه په ارمان د ښایسته زیبا مخونه دي
تل ژړاکا ، او په نارو په فریادونه دي هو چه عاشق سي د هغوکله قرار دي نا ؟

☆☆☆

د عاشقانو زړه ئې مات کانه رغېږي نا هو پر ښیښه باندې پترې کله جوړېږي نا
چه د وصال په امید هر عاشق او سېږي نا که ئې دا نهٔ وي عاشق هرساعت بېماردي نا

☆☆☆

د مینانو وصال عین لوی اختر دي نا یوخوخوار «نصر» لهٔخپل بخته مرور دي نا
د بېلتون اوردئ چه پهٔسوی درست ځیگر دي نا هیڅ نه جوړېږي د بېلتون کاری پرهاردي نا

## «٤۱» ذکر د برگزیدۀ احد ، ملانور محمد غلجی

مشهور دئ په غلجی، اوپه غلجوکې **توخی** دئ ، د**ملایارمحمد** زوی دئ ، اوس په **پنجوائی**(۲) کې اوسي ، علوم شرعیه ئې ویلی دئ،اوتدریس کا ، په عمر ډېر پوخ سړی دئ اتیاکلن ، او د قندهار په ښار کې پنځه کاله د خاندان عالیشان د حاجي میرخان د ارتینو او کوچنو نجونو استاد ؤ ، او هغو مخدراتو ته د سراپردۀ عصمت ئې درس کا ·

**نورمحمد** اشعارهم لري ، یو کتاب ئې کښلی دئ،په نامه «**نافع مسلمین**»او پهٔدې کتاب ئې احکام شرعیه بیان کړی دئ · دا کتاب ئې کښلی دئ په نامه د پادشاه جمجاه شاه حسین او له معتبر و کتابو د فقه او اخلاق ئې اخیسته ( ۳ ) کړی دئ · ملا نور محمد اوس په پنجوائي کې تدریس کا **مشکوة شریف** [ ۸٦ ] او **بخاری شریف** او

(۱) ناتار : تاراج ویلغار ·
(۲) پنجوائی : که بصور مختلف پنجوای ، فنجوای ، بنجوای ، پنجواهی ، از طـرف

آتش‌هاست که خدا در دلهای عشاق افروخته پریشانی‌ها و غمهاست که با ایشان رو بروست
دیگران در تمام‌شب آرامند و خواب میکنند ولی بر عشاق هر شب هجوم آلامست

☆☆☆

خداوند بر قلوب عشاق داغها نهاده که همواره به آرزوی رویهای زیبا اند
همواره میگریند ، ناله میکنند بلی کسیکه عاشق شود ، کی قراری دارد ؟

☆☆☆

دل عشاق را شکست ، و کی درست میشود ؟ بلی ! شیشه پیوند نمی پذیرد
عاشق همواره بامید وصال زندگانی میکند اگر این آرزو نداشته باشد، هر دم بیمار است

☆☆☆

وصال برای عشان عید اضحی است ولی تنها « نصر » از بخت خود رنجیده است
زیرا آتش فراق ، تمام سینه‌اش را سوخته وجراحت کاری فراق هیچگونه علاجی ندارد

☆☆☆

## « ٤۱ » ذکر برگزیدهٔ احد ملانور محمد غلجی

مشهور است به غلجی ، ودرغلجی **توخی** است، ولد **ملا یار محمد** است، وحالا در **پنجوائی** سکونت دارد ، علوم شرعیه را خوانده و تدریس میکند ، بعمر ، شخص بسیار پختهٔ هشتاد ساله است و درقندهار پنج سال استاد نسوان واطفال دودمان عالیشان حاجی میرخان بود ، و به آن مخدرات سراپردهٔ عصمت درس میداد .

**نورمحمد** اشعار هم دارد ، و کتابی نوشته بنام «**نافع مسلمین**» که درین کتاب احکام شرعیه را بیان کرده ، و بنام پادشاه جمجاه شاه حسین بنا نهاده است . و از کتب معتبر فقه و اخلاق اقتباس نموده .

ملانور محمد اکنون در پنجوای تدریس میکند ، **مشکوة شریف و بخاری شریف** و

---

که اکنون هم بهمین نام مشهور است و تقریباً (۱۵) میل بطرف غرب جنوبی قندهار موجوده افتاده ، و مرکز حکومتی است .

**هدایه** او **کنز** او **طریقهٔ محمدیه** او نور مروجه کتب په تدریس لولي ، دا نظم د ده دئ په نصیحت کښې، مخمس.

## نظم د نصیحت

ته مؤمن ژوندی په دین ئې زما یاره ته ژړا فریاد کوه په څو کوکاره
استغفار توبه کوه د ځان د پاره ته هم ځان ساته پناه غواړه له ناره
بیداري کړه په سهار کښې زما دلداده !

زه و تاته یو ویی(۱) کړم زما وروره په سهار بیداري کړه آخر و گوره
یا به ته سی په جنان کښې یا په اوره چه ستا حال به په څه رنگه سي له گوره(۲)
بیداري کړه په سهار کښې زما دلداره !

په هروقت له مسلمانه دلداري کړه په دریمه شپه کښې(۳) ډېره بیداري کړه
هم پر خپل صورت وژاړه هم زاري کړه دا خپل ځان لکه حباب ترې بیزاري کړه
بیداري کړه په سهار کښې زما دلداره !

ته دروغ الابلا (٤) مکړه د نیا کښې دا دي زیان دئ زما جانه په عقبا کښې
ستا ډېر سود دئ در ته وایم په ژړا کښې لـه گناهه خلاصی ډېر دئ په دعا کښې
بیداري کړه په سهار کښې زما دلداره !

ته د خدای له حکمه مه غړوه غاړه نیك اخلاق کړه ته طلب او بنه خوی واړه [۸۷]
تضرع کړه خپل صورت کړه وچه ناړه(٥) ته لـه خپو یې جورسوی تن ویجاړه
بیداري کړه په سهار کښې زما دلداره !

ته امید کړه ورحمت ته ځما جانه ! د رحمت دروازه خلاصه ده جانانه !
هر سهار رحمت نازل سي له آسمانه مغفرت په سهار غواړه له رحمانه
بیداري کړه په سهار کښې زما دلداره !

---

(۱) ر: ٥٥.

(۲) «و گوره» و «له گوره» بمعنی ببین ، و از گورستان ، تجنیس است .

(۳) یعنی در پاس سوم شب ، ضرورت نظم عبارت را پیچیده ساخته و(د) اضافی پیش از

**هدایه و کنزوطریقهٔ محمدیه**،ودیگر کتب‌مروجه‌را تدریس‌میکند،این‌نظم‌وی‌راست‌در نصیحت بصورت مخمس :

## نظم نصیحت

تو مؤمنی و بدین زندهٔ ، ای یار من ! همواره گریه و زاری کن
برای خود توبه و استغفار کن خود را نگهدار ، و ازآتش پناه بخواه
عزیزم ! در سحرگه بیداری کن !
برادرم ! با تو سخنی دارم سحرگه بیدار باش ، و ببین
گه به بهشت خواهی رفت یا به آتش نمی‌دانم که ازگوربکدام حال‌خواهی‌افتاد
عزیزم ! در سحرگه بیداری کن !
همواره با مسلمان دلداری کن در حصهٔ سوم شب بیداری کن
بر خویشتن بگری و زاری کن خویشتن‌راحباب بشماروازخود بیزاری کن
عزیزم ! در سحرگه بیداری کن !
دروغ‌گوئی و فریب کاری دردنیا مکن عزیزم ! اینها زیان عقبای تو اند
سود زیاد تو در گریه است در دعا از گناه رهائی است
عزیزم ! در سحرگه بیداری کن !
از حکم خدا گردن متاب همه اخلاق نیکو ، و خوی خوش بطلب
زاری کن، وبدن‌خود را مانند نارخشک ساز تنت نابود شدنی‌است واز گل ساخته شده
عزیزم ! در سحرگه بیداری کن !
برحمت امیدوار باش جان من ! زیرا دروازهٔ رحمت همواره کشوده است
هرسحر، از آسمان رحمت فرو می آید از خدای رحمان سحرگه مغفرت بخواه
عزیزم ! در سحرگه بیداری کن !

---

(٤) الابلا : خیانت وفریب ودوروئی (٥) ناړه : به زورکی«ړ» دومعنی‌دارداول‌لعاب دهن ؛ دوم نار حبوبات ، و درینجا مفهوم ثانی مقصود است‌که باین معنی ناړی هم گویند .

# «۴۲» ذکر د شاعر ظریف حافظ عبداللطیف اڅکزی

دا شاعر په مجمع کې د فضلاء سرامد دئ ، او په ظرافت کې هم ، په اصل د **بوستان**(۱) دئ پلار ئې **غلام محمد** نومېدئ ، قندهار ته راغئ ، په ماشور(۲) کې اوسېدئ **عبداللطیف** له کچنيوالی په علم شروع وکړه، قرآن شريف ئې حفظ کا، او ځکه چه طبع لطيف ئې درلوده، نو ئې ډېر خواږه اشعار وويل، په شعر کې(۳) طبع ظرافت ته مایله ده، خو بیا هم هسې قصې او حکایتونه نظم کا، چه اور بد و نکی عبرت ځنی کا، او پند و نصیحت دي ، په ظرافت کې مفید ورمونه(٤) کا، او هر کله مجلس د آشنایانو ، په ظرافت د ده مسرور وي : کاتب الحروف کله کله دی وینې، او اشعار ئې اروي، او س د ځلو پښتو کالو دئ، او سره د دې چه عمر ئې پوخ دئ ،خو د ځوانی مسرت کا ، او مجلسيان ئې په محبت نشاط بیامومي ، په مجالسو کې اشعار ارتجالا لولي، او قصې کا. فقير کاتب الحروف د غه يوه قصه دده، په دې خزانه کې نقل کا، چه کتاب له ظرافته هم خالي نه وي[۸۸].

## قصه د سوی او د اوښ

غوږ و نیسئ یارانو دادا اوښ او سوی قصه سوه | خورا ډېره خوږه سوه

☆☆☆

یو سوی ـ اوښ آشنا سو | بیحده ئې همرا سو
یاری به ئې کوله ، یو له بلی یارانه سوه | خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

اوښ وویل چه سویه ! | اې زما یاره نیکخویه ؟
بیتامې ښادي نسته شپه او ورځ مې په تابه(٥) سوه | خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

ټول عمر ئې صحبت کا | د سوي سرې الفت کا
شیبه ئې بیلتون نکا یو له بلی (٦) مرکه سوه | خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

(۱) بوستان : جائی است بشمال کویتهٔ بلوچستان تخميناً (۲۰) میل دورازان ، ومسکن اقوام اڅکزی است .

(۲) ماشور : حاشیه ۱ ص۱۳٦ خوانده شود.

(۳) کې : مخفف کې ئې .

# « ٤٢ » ذکر شاعر ظریف حافظ عبداللطیف اخکزی

سرامد مجمع فضلاء وظرفاست ، اصلاً از **بوستان** است ، پدرش **غلام محمد** نامداشت ، بقندهار آمد،ودرماشور سکونت گزید. **عبداللطیف** ازخوردی به تحصیل علم آغاز کرد،وقرآن شریف را حفظ نمود ، چون طبع لطیفی داشت ، اشعاربسیار شیرینی را سرود،درشعرطبعش به ظرافت مایل است،بازهم چنان قصص وحکایاتی را نظم میکند ، که شنوندگان ازان عبرت میگیرند. وپندونصیحت است. درلباس ظرافت ، پندهای مفیدی میدهد،وهمواره ازظرافت وی مجلس آشنایان مسرور می باشد. کاتب الحروف گاه گاهی وی را می بینند ، و اشعارش را می شنود ،حالا چهل ساله است ، وباآنکه عمرش پخته است،مسرت جوانی دارد، ودرصحبت وی اهل مجلس نشاط می یابند ، درمجالس اشعاری را ارتجالا میگوید ، و قصه‌ها میسراید. فقیر کاتب الحروف این یك قصه وی را درخزانه نقل میکند ،که کتاب ازظرافت هم خالی نباشد.

## قصهٔ خرگوش و اشتر

عزیزانم !گوش کنید، قصهٔ اشتروخرگوش است — نهایت شیرین است

☆☆☆

خر گوشی با اشتری آشنا شد — بی نهایت با وی رفیق گردید
با هم یاری میکردند ، و آشنائی می نمودند — قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

اشتر گفت : «ای خر گو ش ! — ای یار نیك خوی من !»
«بیتو شادی ندارم، وشب وروز بهبودم ازتست» — قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

همواره صحبت می کرد — وبا خرگوش الفت می نمودند
لحظهٔ هم جدا نمی شدند، وبایکدیگر سخن می گفتند — قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

---

(٥) بنه : به فتحهٔ اول ، بمعنی بهبود است .

(٦) بلې : مخفف (بله ئې) است ، یوله بله ئې مرکه سوه ( با یکدیگر صحبت داشتند)

سوی ؤ د اوښ په کور کې — ژوندون ئې په سرور کې
قصه به ئې شروع کړه هرسهار، څو به غرمه سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

سوی تل مېلمه د اوښ ؤ — دوستی کې ډېر په هوښ ؤ
خپلوی سوه هسې ټينګه چه به پرې نه په برمه سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

اوښ هم عزت د سوی کا — ساتنی (١) د ابروی کا
د يار د زړه د پاره به مقبوله نه پلمه (٢) سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

يو ورځ سوي ميلمستيا کړه — د اوښ د پارې (٣) دا کړه
خپلوان ئې را خبر کړله د سوي ټوله مېلمه سوه — خورا خوږه قصه سوه[٨٩]

☆☆☆

اوښ راغئ د سوي کور ته — يو غار ئې وليد پورته
داتنګ په هسې شان ؤ، چې (٤) نه ځای يو ه ګو نه سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

راوړی ئې خواړه وه — يو څه وه لږ وابنه وه
دا ټوله چه ئې راوړله، د اوښ يوه ګوله سوه — حورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

اوښ وږئ ولاړئ کور ته — ختلای نسو پورته
سويانو ئې ځای نه در لودئ ټوله شرمنده سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

سويا نو جمعيت کـا — ها (٥) سوی ئې ملامت کـا
ول (٦) ستاو داوښ څه دي چه دوستی سره توده سوه؟ — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

چـه سوی آشنا د اوښ سي — بايد چه لږ په هوښ سي
د اوښ د پاره ښائي چه پيدا يو مامته (٧) سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

هر څوك چه يارانی کا — «چه پيل کا پيلخانی کا» (٨)
هرچا له مناسبه آشنائی او طريقه سوه — خورا خوږه قصه سوه

☆☆☆

چه څوك مناسب کـار کـا — عبرت لـه دې ګفتـار کـا
له خپل ټغره سمه د هرچا پښه را اوږده سوه (٩) — خورا خوږه قصه سوه[٩٠]

---

(١) ساتني : مخفف ساتنه ئې است. (٢) پلمه : بروزن کرده بمعنی بهانه . ( ٣ ) دپارې

خرگوش در خانهٔ اشتر بود　　زندگانیش بسرور میگذشت
از سحر تا چاشت با هم افسانه میگفتند　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

خر گوش همواره مهمان اشتر　　و در دوستی باهوش بود
دوستی آنهاآنقدرمحکم شد ، که به برمه هم بریده نمیشد　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

اشتر نیز خرگوش را عزت میداد　　آبروی وی را نگه میداشت
برای خاطردوست ، هیچگونه بهانه جوئی نمیشد　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

روزی خرگوش دعوت　　خاصی به اشتر داد
دوستان رادعوت‌داد،وهمه‌مهمان خرگوش شدند　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

اشتر بخانهٔ خرگوش آمد　　در بالا غاری را دید :
چنان‌تنگ‌بود، که یك‌زانوی اشتردران جای‌نمیشد　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

خوردنی آورده بودند :　　چه بود ؟ گیاه کم
هر قدریکه آوردند ، یك لقمه اشتر شد　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

اشتر گرسنه بخانه رفت　　بالا رفته نمی توانست
خرگوش‌هاجائی‌برای‌وی‌نداشتندهمه‌شرمنده گشتند　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

خر گوش ها فراهم آمدند　　وهمان‌خرگوش‌راملامت‌کردند
گفتند :تراباشترچه‌نسبت ؟ که دوستی‌تان گرمست　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

چون خرگوش با اشتر آشنا شود　　باید کمی فکر نماید
و برای اشتر باید یکحصه زمین‌کشتی تهیه شود　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

کسیکه آشنائی میکند　　«چون پیل دارد باید پیلخانه هم بسازد»
برای‌هرکس‌آشنایی‌وطریقهٔ آن‌مناسب حال‌ویست　　قصهٔ نهایت شیرینی است

☆☆☆

کسیکه کار مناسب حال خود میکند　　ازین گفتار عبرت می‌اندوزد
هرکس موافق بگلیم خود پای دراز کند　　قصهٔ نهایت شیرینی است

---

(٦) ول ! به ضمهٔ‌اول‌مخفف«ویل» است بمعنی گفت . (٧) مامته : احاطهٔ زمین کشتی .
(٨) ضرب المثل مشهور [illegible] (٩) ضرب المثل [illegible]

# « ٤٣ » ذکر د رستم دوران سپه سالار عالی تبار ، زبدة الزمان

## سیدال خان ناصر (۱)

محمد هوتك له **الف خان ناصره** روایت کا: چه **سیدال‌خان** د **ابدال‌خان** زوی، او **باړی‌زی‌ناصر** دئ ، چه پلار ئې اوسېدی په **ډیله** کې، چه د وازیخوا په سریولځای دئ ، هغه وخت چه **سلطان ملخي توخی**(۲) استقلال‌وموند،اوله‌غزني‌ترجلدکه ئې‌حکومت‌کا،نو باړی‌زی د ابدال خان سره راغلل ، اوپه اتغر (۳) ئې سکونت وکا. ابدال‌خان د عادل‌خان توخی سره په هغه وقت له بیګلربیګی (٤) سره د قندهار، چه د **صفوی پادشاه** له خواؤ، جنګونه وکړل ، او نه ئې پرېښو ، چه پر کلات حکومت وکا، سیدال خان چه د ننګیالی‌پلار زوی ؤ ، په سخاوت او شجاعت زبده د روزګار سو، او هغه وقت چه حاجی‌میرخان علیین‌مکان ، په قندهار کې ګرګین‌خان بیګلر بیګی وواژه ، سیدال خان ناصر د پښتنو د لښکرو سپه سالارؤاوده لوستلی‌وه‌علوم مروجه،لکه :فقه،تفسیر، فصاحت ، صرف‌و نحو اوفارسی کتب.

چه د میرویس خان په ژوند،د صفوی لښکردقندهاردخلقو انتقام ته راغلل،نوسیدال‌خان ناصر ، د حاجی میرخان له خوا،د پښتنوسپه سالارؤ،اوڅوواره ئې د صفوی لښکرچه‌ترحساب تېر ؤ ووژل،په دې ټولو جنګو سیدال‌خان غالب اوفاتح ؤ،اوپه دلاوری اوشجاعت‌ئې [۹۱] شهرت وکا ، چه حاجي میرخان علیین مکان وفات سو ، نوسیدال خان عالیشان د شاه محمود سپه سالار سو، او پر اصفهان ئې یرغل وکا . د صفویانو په جنګو پر ټولو میدانو غالب او فاتح سو ، څو ئې اصفهان فتح کا، ، او دښمنان ئې مقهور دي .

---

(۱) راجع به شرح حال سیدال خان به تعلیقات آخر کتاب‌رجوع شود (ر:٥٥).

(۲) شرح حال سلطان ملخی و خانوادهٔ اوو پسرش عادل خان که در عصر خودازمشاهیر افغانی‌اند ، در تعلیقات آخر کتاب خوانده شود( ر: ٥٦ ) .

## « ٤٣ » ذكر رستم دوران سپه سالار عالى تبار ، زبدةالزمان

## سيدال خان ناصر

محمد هوتك از **الف خان ناصر** روايت كند : كه **سيدال خان** ولد **ابدال خان** و **ناصر باړى زى** است، كه پدرش در **ډيله** ميزيست كه درسر وازه‌خوا يكجائى‌است، وقتيكه **سلطان ملخى توخى** استقلال يافت، وازغزنى تا جلدك حكومت ميراند، باړيزى با ابدال‌خان آمدند، ودراتغرسكونت كردند. ابدال‌خان به همراهى عادل‌خان توخى درآنوقت با بيگلر بيگى قندهار كه از طرف **پادشاه‌صفوى** مقرر بود ، جنگها كرد ، ونماند ، كه بر كلات حكمرانى كند .
سيدال خان كه فرزند پدر غيرتمندى بود ، در سخاوت و شجاعت زبدهٔ روزگار بـر آمد و درآنوقتيكه حاجى ميرخان عليين‌مكان، درقندهار گرگين‌خان بيگلر بيگى راكشت ، سيدال‌خان ناصر سپه سالار لشكر پښتون بود ، وى علوم مروجه مانند : فقه ، تفسير، فصاحت ، صرف ونحو، و هم كتب پارسى را خوانده بود .

در حيات ميرويس‌خان ، وقتيكه لشكر صفوى بانتقام مردم قندهار آمدند ، سيدال خان از طرف حاجى ميرخان سپه سالارپښتون بود ، و چندين بار لشكر صفوى راكه افزون از حساب بود بكشت ، ودرين همه جنگها سيدال‌خان غالب و فاتح بود ، وبه دلاورى وشجاعت شهرت كرد ، چون حاجى ميرخان عليين مكـان وفات يافت ، سيدال‌خان عاليشان سپه سالار شاه محمود گرديد ، و بر اصفهان حمله برد، درجنگهاى صفويه ، برتمام ميدانها غالب وفاتح برامد ، تاكه اصفهان را فتح نمود ، و دشمنان را مقهور كرد .

---

(٤) طوريكه درتشكيلات‌دورهٔ‌صفويه ديده مى‌شود، بزرگترين حكام ولايات بيگلر بيگى ناميده ميشد ، و قندهار همواره دران عصر حكمرانى باين نام داشت ، ظاهراً بيگلر بيگى مستقيماً ازطرف شاه مقرر ميشد ، و چندين نفر بنام خان وسلطان دراطراف‌ونواحى آن‌ولايت

نقل کا : چه سیدال‌خان ناصر ، په هغه وقت چه په جنگو ئې گرفتاری نه وه ، او له حیص وبیص ئې فراغ ؤ ، اشعار ئې ویل،او د عشق سندری ئې کښلې : اوس چه په مهماتود امور په اصفهان کې بخت دئ ، د شعر ویلو فرصت ئې نسته او ورځې ئې تېرېږي ،په هسې‌جنگو چه رستم‌هم ځنی ډارکا. د سیدال‌خان له اشعاروڅخه دغه بدله په خزانه کې‌کاږم، چه داکتاب د ده له ذکره خالي نه وي ، او د دې خان عالیشان په ذکر مزین وي .

## بدله د سیدال خان عالی مکان

یار ماله هسې گران سو (۱)		راتېر تر ټول جهان سو
نور نه وینم په سترگو		جهان ټول راته جانان سو

✩✩✩

دوې زلفې دې اوږدې کړې		پر مخ دې راخپرې کړې
سرې‌اشرپۍ دې‌په‌تندی‌باندې سپرې کړې		گرزې په باغ کې په گلو نو کې نخرې کړې
پـه اور دې وسوم یـاره		راته اور تازه بوستان سو [۹۲]

✩✩✩

مین چـه آشنایی کـا		شپه ورځ به گریانی کا
شهی(۲)ده ستمگاره خوشحال زړونه به زخمی کا		لیندۍ اري د ورځیو، د باڼو غشی‌کاری کا
پرهار مې گـوره خـلقه		د دلبر د تیر نښان سو

✩✩✩

مین بر لویو غرو ځي		سر تور به نیمو شپو ځي
ووزي له وطنه ، وطن‌پرېږدي پر چولو ځي		فریادوناري وکـا ، په نارو په غلبلو ځي
وصال ئې نصیب نـه سو		گـوره زړه ډك په ارمان سو

(۱) این بدله که از طرف یکنفر سپه سالار معروف و دلاور سروده شده ...

نقل کنند : که سیدال‌خان ناصر، وقتیکه در پیکارها گرفتاری نداشت ، وازحیص و بیص فارغ بود ، اشعاری میگفت ، و نغمه‌های عشق مینوشت ،حالا که در اصفهان به مهمات امور مشغول است ، به گفتن شعر فرصتی ندارد ، و روزهایش به چنان جنگها میگذرد ،که رستم هم ازان میترسد . از اشعار سیدال‌خان این بدله را در خزانه مینگارم ، تا این کتاب از ذکرش خالی نباشد ،و بذکر این خان عالیشان مزین گردد.

## بدله از سیدال خان عالیمکان

یار بمن چنان عزیز شد		که‌ازهمه‌جهان‌نزدیکم گردید
دیگری را بچشم نمی بینم		تمام جهان‌بنظرمن جانان‌شد



دو زلف را دراز کردی		و بر روی خود پریشان ساختی
اشرفی های سرخ را بر جبین ماندی		در باغ میگردی ، ونازو ادا میکنی !
ای یار به آتشم سوختی		و بوستان تازه برایم آتش شد



عاشقی که عشق می ورزد		شبها و روزها باید بگرید
معشوقه‌ستمگار است‌ودلهای‌خوش‌رامجروح‌خواهدکرد		کمان ابرو دارد و تیر مژگانش کاری است
ای مردم ! جراحت مرا ببینید!		که هدف تیر دلبر گشت !



عاشق به کوههای بلند میرود		و در نیمهٔ شبها بیچاره میگردد
ازوطن‌میرودوآنرا می‌ماندبردشتهای‌سوزان میگذرد		فریاد و فغان ، میکند و با ناله وانین میرود
وصال نصیبش ، نشد		ببین ! که دلش از ارمان پرگشت

---

که اکنون در دست است ،کمتر دیده شده ، و حفظ این ودیعهٔ ادبی از غنایم این‌کتابست .

(۲) شهی . شها ، شاه : در پښتو بمعنی معشوقه است ، و در ادبیات هم خیلی مستعمل (د ن ۴۲).

ناريِ وهم عالمه ! د شپې تر صبحدمه
ناتوانه د بېلتون يم يو ګړی نلرم دمه بېتامې نفس خېژي راځه زما د زړه همدمه
نظر پرما غريب کړه چه تاخون مې ستا ، په ځان سو

☆☆☆

شبنم پر ګلو ښکاري زما اوښکی داری داری
خوناب ځي ستا لغمه زما په مخکی لاری لاری تمامه شپه کم تېره په ژړا په ناری ناری
ښکاره سوه چه مچنون يم لېونتوب مې اوس عيان سو

☆☆☆

بوستان ښکلی زيبا دئ رنګين په اوښکو زما دئ
دزړه پرهار ګلګون دئ، چه بلبل په تماشا دئ په مينه مې زړه وچاودی ته وايې په خندا دئ
نتلی د بېلتون يم
زه « سيدال » دا مې بيان سو [۹۳]

ای مردم ! ناله و فغان میکنم هر شب تا سحرگاه
ناتوان فراقم ، ولحظهٔ آرامی ندارم روحم بیتو بیرون می‌رود، ای همدمم بیا!
بمن بیچاره نگاهی کن که مرض عشق تو در بدن دارم

☆☆☆

شبنم بر روی گل می‌نماید ؟ یا اشك من فواره میزند
بر رویم از غمت خوناب جاری است تمام شب را بگریه و ناله میگذرانم
آشکارا شد که مجنونم دیوانگی من اکنون عیان گردید

☆☆☆

بوستانیکه زیبا و قشنگ است به اشك من رنگین است
جراحت قلب من گلگون ، و بلبل در تماشای آنست دل من از عشق تو شگافت، ولی تو تصور میکنی که میخندد

ماتم زدهٔ فراقم :
من « سیدال » و این گفتار من است

## دریمه خزانه

# په بیان دښځوچه شعر و نه ئې ویلی دي

### «٤٤» ذکر د عصمت پناه نازو توخې

هسې نقل کا : چه **نازو** د سلطان ملخی توخی لور وه ، چه تولد ئې په (۱۰٦۱) سنه هجری هغه ځای ته نږدې ؤ، چه **تازی** (۱) نومېږي . سلطان ملخی په هغه وقت د غزنی تر جلد که د اقوامو مشرؤ او په استقلال ئې حکومت کا، معارض او ساری ئې نه درلود ، او نازو په کوچنی والی له مېرمنو پښتنو ، او سپین ږیرو علماؤ څخه لوست وکا ، او مېړه مخې (۲) ارتینه وه چه نارینه ئې مېړانې او شجاعت او سخاوت ته حیران ؤ .

روایت دئ له ثقه راویانو،چه سلطان ملخی د سورغره ته نږدې په جنګ کې ومړ(۳) او **حاجی عادل** چه د نازو ورور ؤ ، د پلار په انتقام جنګ ته ولاړ ، کلا او کور ئې نازو ته پرېښو ، په هغه وقت نازو توره په ملا کړه ، او د جنګیالیو ځوانانو سره ئې کور او کلا ، له تاړاکه د دښمنانو وساتل . ماته خپل پلار حکایت کا : چه نازو انا په مېلمستیا او غریبانو مسافرانو په پالنه (٤) معروفه وه ، او هروقت چه په ژمی به د مسافرانو قافلې راغلې ، دنازو پر کلا ئې اړول ، په سووسوو مېلمانه به ئې روزل ، او دوی ته ئې ډوډۍ ورکوله ، چاچه به کالی نه درلود ، لباس ئې ورکاوه . او د سخاوت نوم ئې

---

(۱) تازی : رباط دومی است ،که بشمال شرق کلات برجادهٔ کابل افتاده ، در نزدیکی آن طرف جنوب هنوز اولاد ملخی توخی سکونت دارند .

(۲) مېړه مخې : معنی تحت اللفظ آن مردروی است ، و در صفت زنانی گفته می‌شود که دارای مردانگی و همت و شجاعت و اخلاق مردانه باشند .

# خزانهٔ سوم

## دربیان زنانیکه شعرها گفته‌اند :

### « ٤٤ » ذکر عصمت پناه نازو توخی

چنین نقل کنند: که **نازو** دختر سلطان‌ملخی توخی بود، که تولدش بسال(۱۰٦۱)هجری نزدیك جائی بود ،که **تازی** گویند . سلطان ملخی دران وقت از غزنی تا جلدك حکمدار اقوام بود ، و به استقلال حکومت میراند ، معارض و همسری نداشت ، و نازو در خوردی از خانمهای افغان و علمای ریش سپید درس خواند ، و زن مردصفتی بارآمد ،که مردان به مردانگی و شجاعت و سخاوت وی حیران بودند .

از راویان ثقه روایتست :کــه سلطان ملخی نزدیك سورغر ، در جنگی مــرد ، و **حاجی‌عادل** که برادر نازوبود، بانتقام پدربجنگ رفت ، قلعه وخانه را بنازو ماند. دران وقت نازو شمشیر بکمربست ، وبه همراهی جوانان جنگی ، خانه وقلعه را از چپاول دشمنان نگهداشت . پدرم بمن حکایت کرد : که نازوانا به مهمان نوازی،وپرورش غرباء ومسافرین معروف بود ،و هر وقتیکه در زمستان قافله‌های مسافرین می آمد ، درقلعه نازو سکونت میکردند ، و به صدها نفر مهمان را می‌پرورانید، وبه‌آنها نان میداد،کسیکه لباس نمیداشت لباس میدادش . ونام و سخاوت وی

(۳) ومړ : مرد ، ماضی مطلق است از مصدر مړل (مردن) حاشیه۲ص۸۲رابخوانید .
(٤) پالنه ، پرورش ، نگهداری ، حفظ روابط .

له خيبره تر **کوسانه**(۱) خپور سو، نازو په حباله د**ښالم خان هوتك** [۹٤]وه چه د **کرم خان** زوی ؤ ، او د هوتکو ښالم خيل چه نن ورځ پادشاهی د قندهار او اصفهان د دوی ده ، له دې شجرهٔ طيبه څخه دي · او نازو څلور زامن درلود ، چه مشر ئې حاجی ميرخان او نور **عبدالعزيزخان**، او**يحيی خان**، او**عبدالقادرخان** دي · هسې روايت کا محمد کاتب الحروف له خپله پلاره چه نازو انا عابده صالحه ښځه وه ، اوخپلو زامنوته ئې ټول عمر په اوداسه شيدې ورکړلې او چه عليين مکان حاجی ميرخان تولد سو خوب ئې وليد : چه شيخ · بيټنی رحمة الله عليه ورته وائي:«دا زوی ښه تربيت که چه لوی سي، لوی کارونه به وکا ، اوپه زيارت د بيت الله به ځان مشرف کا ، او له نسله به ئې پيدا سي ، پادشاهان چه دين به روښان کا» · نو حاجی ميرخان چه وزېږېدئ ، مور ئې په ديانت او عبادت سره لوی کا ، او د دين فرايض ئې ټول پر اوم کال وروښوول او هر کله به ئې ده ته نصيحت کا : « چه زويه ! د شيخ بيټنی نيکه قدس الله سره ، له قوله ستا په مخ کې دي لوی کارونه ، نو چه لوی شې ! د خدای عبادت او د خلقو خدمت کړه ، ته خدای پيدا کړی ئې ، د دې د پاره ، چه لوی کارونه تر سره کړې ، او خلق الله په خدمت ستا آرام وکا » ·

روايت دئ : چه حاجی ميرخان عليين مکان به هروقت ويل چه « زما مور ماته د لويو کارو وصيت وکا، زه بايد هسې کارونه وکړم»· چه په(۱۱۱۹) سنه هجری ئې قوم دظالمانو له ظلمه وژغوره ، نو ئې سجده د شکر وکړه ، او وې ويل [۹۵] «خدايه ! دا هغه کار ؤ ، چه ماته مور سپارلی ؤ ، او وصيت ئې کړئ ؤ ، دا خو ستا د عبادو او بندگانو خدمت ؤ ، چه ما ترسره کا»· زما پلار هسې وويل : چه نازو انا علاوه پر سخاوت او شجاعت او عبادت هسې ارتينه وه ، چه د خدای تعالی څخه په مناجات ئې ، ډېر اشعار ويل ، اويو دېوان ئې درلود ، چه دوه زره بيتونه پکښې وه ، او هلته ئې ښه

(۱) کوسان: جائی است که بمغرب هرات بر کنارهريرود افتاده ، وحالا مربوط حکومتی غوريانست ، پښتو زبانها فاصله بين خيبر و کوسان را شرقاً و غرباً همواره در محاورهٔ خود

از خیبر تا **کوسان** رسید ، نازو در حبالهٔ **سالم خان هوتك** بود ، که پسر **کرم خان** بود، و سالم خیل‌های هوتك که امروز پادشاهی قندهار و اصفهان دارند ، ازین شجرهٔ طیبه‌اند . و نازو چهار فرزند داشت ، که کلانتر آنها حاجی میرخان و دیگر آن **عبدالعزیزخان** ، و **یحیی خان وعبدالقادرخان** اند. کاتب‌الحروف محمد هوتك از پدرخودچنین روایت کند : که نازو زن عابده و صالحهٔ بود ، و به پسران خویش‌درتمام عمر به وضو شیر داد ، چون حاجی میرخان علیین مکان متولد گردید ، خواب دید : که شیخ بیټنی‌رحمة‌الله علیه به‌وی گوید: که‌این فرزند را خوب تربیه کن ، چون بزرگ گردد ، کار های بزرگ خواهد کرد . و بزیارت بیت‌الله خود را مشرف خواهد ساخت ، و از نسل وی پادشاهانی پیدا شوند که دین را روشن خواهند کرد.» چون حاجی میرخان متولد گردید، مادرویرا به‌دیانت‌وعبادت‌بزرگ‌ساخت، ودر سال هفتم تمام فرایض‌دینی‌را به‌وی‌آموخت،وهروقت نصیحتش‌می نمود که:«ای‌فرزند! قرارقول شیخ بیټنی نیکه قدس‌الله سره ، کارهای بزرگی‌پیش روی داری ، وقتیکه کلان شوی ،عبادت خدا ، وخدمت‌خلق‌الله کرده باش، خداوند ترا برای‌آن‌آفریده ، که‌کارهای بزرگ را بپایان برسانی ، وخلق‌الله درخدمتت آرام باشند » .

روایت است: که حاجی میرخان علیین مکان اکثرمیگفت :« که مادرم به‌من‌کارهای بزرگ را وصیت‌کرده،من باید همان‌کارها را بکنم». چون‌درسال(۱۱۱۹) هجری ملت را از دست ظالمها نجات داد ، سجدهٔ شکر بجای‌آورد و گفت:«خدایا! این همان‌کاری بود که مادرم بمن سپرده بود ، و وصیت فرموده ، این‌خدمت عباد و بندگان تو بود . که به‌آخررسانیدم».پدرم چنین‌گفت‌که : نازو انا زنی بود ، که علاوه برسخاوت و شجاعت وعبادت در مناجات خداوند اشعار زیادی میگفت ، دیوانی داشت ، که دو هزار بیت بود ، و درآنجا

---

معیار بعد قرارمیدهند ، زیراخیبردرشرق وکوسان دربین مملکت افتاده ، و مابین‌این‌دوجای بعد زیاد است .

نكات اداكړى ؤ ، او داسې ئې ويلى ؤ، چه نارينه ئې هم نسي ويلاى ، او دغه رباعي چه د نازو انا ده ، ما له خپله پلاره اروېدلى وه . الحق چه ښه رباعي ده :

رباعى

سحر گه وه ، د نرگس لېمه لانده څاڅكى څاڅكى ئې له ستر گو څخېده
ماوېل څه دى ، كښلى گله ولې ژاړې ؟ ده وېل ژوند مې دئ يوه خوله خندېده(۱)

رحمة الله على الماضين كلهم الى يوم الدين

## «٤٥» ذكر د درشهوار عصمت حليمهٔ حافظه

دخان عليين مكان خوشحال خان خټك لوروه، چه دعبدالقادر خان خټك سكه خور كېده، زما پلار هسې روايت كا: چه زه بنو(۲) ته ولاړم، په هغه وقت دا پښتنه ژوندۍ وه، او دخپل پلار په ژوند ئې مروجه علوم ولوستل ، او بيا د شيخ سعدى لاهورى رحمة الله عليه مريده سوه . او د خپل ورور عبدالقادرخان په لاس ئې بيعت وكا ، چه هغه هم د شيخ دوران [۹٦] خليفه ؤ .

روايت كا: چه حليمه بى بى فاضله او عارفه ښځه ده، او په سراپرده دعصمت ناسته ده، مېړه ئې نه دئ كړئ او د خالق عبادت كا، او د خپل ورور عبدالقادرخان په كور كې نوروښځو ته لوستل كا، او قرآن عظيم ئې هم په ياد دئ. زما پلار وويل. چه حليمه بى بى په پښتو ښه اشعار هم وائي، او پخپل عصر سرآمد اقران ده، او موزونان د پښتو ئې اشعار خوښوي ، د تصوف او طريقت كتب ئې ټول لوستلى دئ او هسې وايي : چه مشكلات دمثنوي شريف او مكتوبات دحضرت امام رباني قدس سره حل كوي، دحليمې په اشعارو كې مجازي عشق نه ښكاري(۳) بلكه ټول شعرونه ئې دحقيقت پرلار دى ، او د محبوب حقيقي صفت كا، دغه يوه بدله ئې زما پلار ماته وويل، چه په خزانه كې(٤)

(۱) حاصل مصدر است از مصدر خندېدل (خنديدن) .

(۲) مقصد همان بنون است ، كه در جنوب پشاور واقع است .

نکات خوبی را جای داده ، و اشعاری را گفته بود ، که مردها هم گفته نمیتوانند ، و این رباعی که از نازو اناست ، من از پدر خود شنیده‌ام ، الحق که رباعی خوبی است :

## رباعی

سحرگه چشم نرگس تر بود : قطره قطره از چشمش میچکید
گفتمش: چیست‌ای گل‌زیباچرا میگریی؟ گفت : زندگانی من یکدهن‌خنده‌است

رحمت خدا بر تمام گذشتگان تا روز قیامت باد

## « ٤٥ » ذکر درشهوار عصمت حافظه حلیمه

دختر خان‌علیین‌مکان‌خوشحال‌خان بود، که خواهراعیانی عبدالقادرخان‌ختك‌می‌شد، پدرم چنین روایت کرد : وقتیکه من به **بنو** رفتم ، این عصمت مآب زنده بود ، ودرعصرحیات پدر خود علوم مروجه را خواند ، و بعد ازان مریدهٔ شیخ سعدی لاهوری رحمة‌الله علیه گردید و بر دست برادر خود عبدالقادرخان بیعت نمود ، که خلیفه شیخ موصوف بود .

روایت کنند، که **بی‌بی حلیمه** زن فاضله وعارفه‌ایست،ودرسراپردهٔ عصمت‌نشسته وشوهر نکرده ، عبادت خالق مینماید ، و در خانهٔ برادرش عبدالقادرخان بدیگر زنها درس میدهد، وقرآن‌عظیم را هم حفظ کرده.پدرم گفت : که بی‌بی حلیمه به پښتو اشعار خوبی‌هم میسرایدو درعصرخودسرامد اقران‌است ، وموزونان پښتواشعارش رامی‌پسندند، کتب تصوف و طریقت راهمه‌خوانده‌است . وچنین گویند: که مشکلات مثنوی شریف ومکتوبات‌حضرت‌امام ربانی‌قدس سره راحل‌میکند، دراشعارحلیمه‌عشق‌مجازی دیده نمیشود ، بلکه تمام اشعارش براصول حقیقت است ، و ستایش محبوب حقیقی را میکند ، این يك غزل وی راپدرم بمن گفت ، که در خزانه

---

(٣) ښکاری : فعل حال است که اکنون ښکاریږي گوئیم یعنی می‌نماید ، شاید در قدیم خود مصدر ښکارل عوض ښکارېدل کنونی مستعمل بود .
(٤) کې : مخفف کې ئې .

دا خلوم ، رحمة‌الله علیها ·

## غزل

| | |
|---|---|
| د اشنای په فکر خوښه هسې شان شوم | نه پوهېږم چه **ممتاز** که **نورجهان**(۱) شوم؟ |
| چه ئې کړمه ستا په مینه سر فرازه | ثنا خوانه په څو رنګه د رحمان شوم |
| چه مجاز مې د ایاز ولاړ ئ له زړه نه | سر بلنده تر محمود غوندې سلطان شوم |
| وهرچا وته چه ګورم واړه دی دئ | د جمال په ننداړو ئې شادمان‌شوم[۹۷] |
| غیر فکر مې له زړه نه را بهر شو | پر خلیل وپر عدو باندې یکسان شوم |

«حلیمې» د غماز مکر زیات له حد شو
چه دې بېل له یاره نکا ، په ګمان شوم

## « ٤٦ » ذکر د عارفهٔ کامله بی‌بی نیکبخته (۲)

دا عصمت پناه اوعارفه د الله د **شیخ‌الله‌داد** لوروه په قوم **مموزی**، چه په **اشنغر** (۳) کې (٤) پلار او نیکه د ممن زیو مـرشدان وه · هسې وایي کاتب‌الحروف محمد : چه زما پلار روایت‌کا ، چه **شیخ امام‌الدین‌خلیل‌غوریاخېل** ، پخپل کتاب «**اولیای افغان**»(٥) هسې کښلی دئ ؛ چه شیخ‌الله داد لوی ولي ؤ،او لور ئې **نیکبخته** چه په حقیقت هم نیکبخته عارفه ښځه وه ، علوم دینی ئې ولوستل او په ریاضت او عبادت د خدائې عمر تېر کـا ·

په‌سنه(۹٥۱)هجری په حبالهٔ نکاح شرعی**دشیخ‌قدم‌قدس‌الله سره** راغله چه **دخواجه محمد زاهد خلیل متی‌زی** زوی ؤ ، او عارف د خدای ؤ ، په سنه (۹٥٦) ئې لـه بطنه **غوث‌الزمان قطب‌دوران شیخ میان قاسم‌افغان**په **بدنی** (٦) کې پیدا سو،او داشیخ‌په معرفت د خدای شهرت وکا چه په هند او پښتو نخوا مشهور سو ·

---

(۱) ممتاز محل بیګم ملکهٔ شاه‌جهان،و نورجهان بیګم ملکهٔ جهانګیر،شاهان‌مغولی‌هنداند.
(۲) ر: ٥۷ ·
(۳) اشنغر : منطقه‌ایست در شمال پشاور که هشتنګر هم نویسند ·
(٤) کې : مخفف کښې ·

داخل میکنم ، رحمت خدا بروی باد ·

## غزل

در فکر آشنا آنقدر خوش شدم — نمیدانم که **ممتازم** یا **نورجهان** ؟
چون بعشق تو مرا سرفراز ساخت — بچندین رقم ثنای رحمان را گفتم
چون مجاز ایاز از دلم رفت — ازسلطانی‌مانند محمود ، هم سربلندشدم
بهر کس که ببینم همه اوست — به تماشای جمالش شادمان گردیدم
فکر غیر از دلم بیرون شد — دوست ودشمن‌پیش من‌یکسان است

ای «حلیمه» مکر غماز از اندازه گذشت
هان که از یارت دور نگرداند

## « ٤٦ » ذکر عارفهٔ کامله بی‌بی نیکبخته

این عصمت‌پناه وعارفهٔ الله، دختر**شیخ‌الله داد مموزی**است، که در**اشنغر** پدر وجدش از رهنمایان ممن زیها بودند ، چنین گوید کاتب الحروف محمد : که پدرم روایت کرد ، که **شیخ امام‌الدین غوریا خیل** در کتاب خود «**اولیای افغان**» چنین نوشته است : که شیخ‌الله داد ولی بزرگی بود · و دخترش **نیکبخته** ، که درحقیقت هم‌زن خدا شناس نیکبختی بود ، علوم دینیه را خواند و بریاضت و عبادت خدا عمر گذرانید ·

بسال (۹۵۱) هجری در حبالهٔ نکاح شرعی **شیخ قدم قدس‌الله سره** آمد ، که پسر **خواجه محمد زاهد خلیل متی زی** و عارف خدا بود · در سال ( ۹۵٦ ) از بطن وی **غوث‌الزمان قطب دوران ، شیخ میان قاسم افغان در بدنی** زاد ، و این شیخ به معرفت خدا شهرت نمود ، که در هند وپښتونخوا مشهور شد ·

---

(٥) مزید احوال شیخ‌امام‌الدین‌درملحقات آخر کتاب نمبر (۷) خوانده شود ·

(٦) بدنی : جائی است در شرق پشاور ·

نقل کا : چه شیخ امام‌الدین هم د دې عرفا له اولاده دئ په کتاب د « اولیای افغان » هسې کاږي : چه بی بی نېکبخته چه د خدای عارفه او رابعه [۹۸] د زمانې ده ، یو کتاب ئې کښلی دئ ، چه نوم ئې دئ ، « **ارشادالفقراء** » او په دې کتاب ئې هسې نصیحتونه په‌شعر ویلی دئ ، چه فقراء او عبادالله ته مفید دي ، دا کتاب په سنه **(۹٦۹)** هجری تمام سوی دئ، او زما پلار ئې نسخه لیدلی وه په بنو (۱) کې، هغه وقت چه دی تللی ؤ په سفر د هغه ځای دغه شعرونه له هغه کتابه زما د پلار په یاد وه ، چه ما دلته ځنی نقل کړل ، چه کتاب مې په ذکر د عارفهٔ دوران رنګین وي .

## مثنوی په نصیحت کې

په زړه ښاد شې ای مؤمنه ! په ظاهر په باطن سپینه !
ظاهر زهد په اخلاص کړه په زړه ټینګ شه له یقینه
شکر صبر پر هرحال کړه خود نمای مشه خود بینه
شپه وورځ به په ژړا یې که خبر شې له سجینه (۲)
سجین ځای د خودنمایه د بې نمازو او بې دینه
له هغه ځا امان راکې یا الله العالمینه !




## بل نصیحت ولها ایضاً

د خدای‌حق ته غاړه کښېږده نورې نورې وینا پر بېرده [۹۹]
دنیا پاته له هرچا ده په اخلاص کې ځنې لېږده (۳)
څو قوت اړې په ځان کې سر د یار په رضاء کښېږده
ځان له بده خویه ژغوره زړه په ذکر د یار بلېږده (٤)
کل دنیا به دې د ښنه شي اوس له بېرې ځنې ربېرده
توله غواړې حسابونه که دې اوښی که دې مېږ ده
دنیا ترک وهه که پوه یې ! د بقاء پرلورې پښې ږده

(۱) بنو : بنون موجوده در جنوب پشاور .
(۲) سجین : وزن فعیل است از سجن یعنی حبس (غریب‌القرآن امام ابی بکر سجستانی) .

نقل کنند که شیخ امام‌الدین هم از اولاد این عرفاست ، ووی در کتاب « اولیای‌افغان» چنین مینویسد : که بی‌بی، نیکبخته عارفهٔ خدا ، ورابعهٔ عصر بود ، ویك کتابی را نوشته است که نام آن « **ارشادالفقراء** » است ، و در این کتاب نصایحی را بشعر نوشته است ، که برای فقراء و عبادالله مفید است ، این کتاب درسنه (٩٦٩) هجری تمام شده است ، وپدرم نسخهٔ آنرا در سفر بنو دیده بود ·

این اشعار را پدرم ازهمان کتاب بیاد داشت ، که من درینجا نقل کردم ، تاکتابم بذکر عارفهٔ‌دوران رنگین باشد·

## مثنوی در نصیحت

ای مؤمن شاد باش	و به ظاهروهم به باطن سپید باش
ظاهراً باخلاص زهد کن	ودردل‌هم یقین‌را محکم گردان
به هرحال شکر و صبر کن	خود نمای و خودبین مباش
شب وروز بگریه خواهی بود	اگـر از سجین آگاه شوی
سجین جای خود نمایست :	و جای بی‌نماز و بی‌دین
ازانجا امانم ببخش	ای الله العالمین ! ! !

## نصیحت دیگر هم ازوست

به امر خدا اطاعت کن	دیگر سخن‌ها را بدرود کن !
دنیا از هرکس میماند	باخلاص ازان کوچ کن
تا قوه در تن داری	سر را برضای یار بمان
خویشتن‌راازخوی بدنگهدار	دل را بذکر یار ملفوف گردان
تمام دنیا دشمنت خواهد شد	حالا از ترس‌شان لرزیده باش
همه حساب می خواهند :	اگراشتر ماده ، اگرمیش است
اگرهوشیاری‌دنیارا ترك ده	و بر راه بقا قدم بمان !

(۳) لپردل : کوچ و سفر کردن ·

(٤) بلپردل : پیچیدن ، لف ·

## ولها ايضاً رحمةالله

| | |
|---|---|
| په طلب ئې وددرېږه | په خدمت ئې هوسېږه |
| له جمله بدو نفرت کړه | و نيکی ته ولاړېږه |
| په نيکی کې ئې اخلاص کړه | بدی مکړه و پوهېږه |
| پر گناه له دوا ړو ستر گو | د باران په دود ورېږه |
| چه يا رب العالمينه ! | له گناهـه را تېرېږه |
| خدای به رحم په تا وکا | په زاريو ته ژړېږه |
| بې پروا وخدای ته مشه | لـه غضبـه وو يرېږه |
| هر غه فعل چه ئې حق دئ : | په طلب ئې و ښورېږه [۱۰۰] |

## « ٤٧ » ذکر د ميرمنې د حسب او نسب بی بی زينب :

### اطال الله بقائها

**بی بی زينب** د حاجی ميرخان علیين مکان لورده، چه له کوچنيوالی ئې په حرم کې دعصمت او عفت لوست وکا ، پسله هغه چه قرآن کريم ئې ولوست ، د احکام اسلامی او فقه کتابونه يې هم ولوستل، اودفارسي مشهور کتب ئې ضبط کړل، استاد د علومو ئې ملا **نور محمد غلجی** دئ ، چه ډېر عمر ئې مخدراتو ته د حرم درس لوستی دئ .

هسې روايت کا : چه بی بی زينب ، ډېره هوښياره او په مهماتو د امورو عالمه ښځه ده. اود پادشاه جمجاه شاه حسين په امورو کې تدبير کا ، اوهر کله په رای صايب مشکلات د امورو حل کا ، او پادشاه د زمان ئې په خبرو عمل کا او نصايح ئې اوري، دا درشهوار د صدف عصمت ښه ښه شعرونه هم وايي ، اود موزونانو او شاعرانو قدر کا، دواوين د شعراء هر کله لولي، اوله مضامين شيرين ئې کام شيرين کا. عمر په عبادت د خدای او تلاوت د قرآن شريف تېروي، او مخدراتو د حرم د پادشاه ته درس او کښل اولوستل ورښيي . نقل کا ، چه د شاه محمود جنت مکان د مرگ حال ، قندهار ته راورسيد، نو د پادشاه خاندان عاليشان ټول غمجن سول [۱۰۱] او مخدراتو د حرم ساندې او غلبلې کا. بی بی زينب چه واقعه د ورور د وفات واورېدله ! ډېره

## هم ازوست ، رحمت خدا بروی باد

در طلب وی بایست و بخدمتش هوس کن !
از همه بدیها نفرت کن به نیکی رغبت نما
در نیکی اخلاص کن بدی مکن ، و بفهم !
بر گناه ، از دو چشم مانند باران گریه کن
که ای خداوند عالمیان ! از گناه من بگذر !
خداوند بر تو رحم خواهد کرد بزاری و گریه باش
ازخداوند بی پروا مشو از غضب بترس !
هر آن فعلیکه حق است در طلب آن حرکت کن

## ٤٧ » ذکر صاحبهٔ حسب ونسب بی بی زینب

### زندگانیش دراز باد

**بی بی زینب** دخترحاجی میرخان علیین‌مکان‌است، که از طفلی‌درحرم عصمت وعفت درس میگرفت و بعد ازان قرآن کریم را خواند و کتب احکام اسلامی وفقه را نیز خواند ،وکتب مشهور پارسی را ضبط نمود ، استاد علوم وی، **ملانور محمد غلجی** است ، که مدت زیادی به مخدرات حرم درس داده است .

چنین روایت کنند: که‌بی‌بی‌زینب ، زن بسیارهوشیاروعالمه‌بامور ومهمات‌است، ودرامور به پادشاه جمجاه شاه حسین تدبیرمیدهد،وهروقت مشکلات اموررا به‌رأی‌صایب حل‌میفرماید وپادشاه زمان هم به سخنانش‌کار می‌بندد ، و نصایحش میشنود . این درشهوارصدف عصمت اشعار خوبی هم میگوید وقدر موزونان‌وشاعران را دارد، دواوین شعرا راهروقت میخواند و از مضامین شیرین آن‌کام را شیرین میگرداند ، عمرخود را به عبادت خدا وتلاوت قرآن میگذراند ، و به مخدرات حرم پادشاه درس نوشت وخواند را می آموزد. نقل کنند:چون‌خبر مرگ شاه محمود جنت مکان به قندهار رسید خاندان عالیشان پادشاه همه غمگین شدند و مخدرات حرم ناله و فریادها کردند . بی‌بی زینب چون واقعهٔ وفات برادر را شنید ، بسیار

غمجنه سوه ، او په تلاوت د قرآن او لمانځه ئې تسکین وکا،د نتلی زړه ۰ اوهسې‌ویرنه(۱) ئې په ویر د خپل ورور مرحوم وویله ، چه زه ئې دلته را نقل‌کوم ، خدای تعالی دې ټول خاندان عالیشان د پادشاه ظل‌الله ژوندی ولري او خوښ ۰

## مرثیه د شاه محمود جنت آشیان

ډغ سو چه ورور تېرله‌دنیا سونا (۲)
قندهار واړه ( ۳ ) په ژړا سونا
زړه مې (٤) په ویر کې مبتلا سونا
چهٔ شاه محمود له ما جلا سونا

✿✿✿

دا روڼ جهان راته تورتم (۵) دي نا
زړه د بیلتون په تیغ‌کرم (٦) دي نا
هوتك غمجن په دې ماتم دي نا
د پاچهی تاج مو برهم دي نا
چه شاه محمود تېر له دنیا سو نا
قندهار واړه په ژړا سونا

✿✿✿

ځوان ومېړه د تورې جنگ ونا
ولاړ د کام په نام و ننگ ونا
دښمن له ده په وینو رنگ ونا
پر میدان شیر وُ ، یا پلنگ ونا
افسوس‌چه مرگ‌د ده‌په خوا (۷)سونا
قندهار واړه په ژړا سونا [۱۰۲]

✿✿✿

محموده ! نه یوازې خور ژاړي
پر مرگ دې ټوله کلی‌کور ژاړي
خپلوان لاځه ، پاچا دې ورور ژاړي
لښکر سپاه دې پلې (۸) سپور ژاړي
پښتون دې ټول په واویلا سونا
قندهار واړه په ژړا سونا

✿✿✿

(۱) ویرنه : رثاء ، سوگواری (حاشیهٔ۵ص٤٦را بخوانید ) ۰

(۲) نا:همان نون‌ترنم‌است که گاهی«نه»وگاهی «نا» خوانده میشود ، ودر آخر تمام مصرعهای این مرثیه بافعال ملحق شده،واین کیفیت ازخواص اشعار قدیم پښتو است، که‌جهت تغنی، نون مفتوح‌ترنم‌را به آن ملحق میگرداند ، چنانچه دراواخر تمام لنډۍ های‌ملی‌همین نون ترنم دیده میشود ۰ لحنیکه این مرثیه‌بآن تغنی میگردد ازالحان مخصوص ملی است، که مضامین‌رثاء و اندوه را به آن میسرایند ۰

غمگین گردید ، و به تلاوت قرآن و نماز، دل اندوهگین خود را تسکین نمود وچنین مرثیه را در ماتم برادر مرحومش گفت ، که من آنرا درینجا نقل میکنم ، خداوند تعالی تمام‌خاندان عالیشان پادشاه ظل‌الله را زنده و خوش داشته باشد .

## مرثیهٔ شاه محمود جنت آشیان

ندا آمدکه برادر از دنیا گذشت — همه قندهار میگرید
دلم به ماتمش مبتلاء گردید — وقتیکه شاه محمود از من جدا شد

✩✩✩

این جهان روشن برایم تاریکست — و دل به تیغ جدائی مجروح است
هوتك باین ماتم غمگین است — تاج پادشاهی ما برهم است
چون شاه محمود از دنیا رفت — همه قندهار میگرید

✩✩✩

جوان و مرد شمشیر و پیکار بود — بر نام و ننگ ملت ایستاده بود
از دست وی‌دشمن به خون رنگین بود — بر میدان شیری بود یا پلنگ
حیف ! که مرگ بسویش آمد — همه قندهار میگرید

✩✩✩

ای محمود ! نه تنها خواهرت میگرید — بر مرگ تو تمام شهر و دیار میگرید
خویشاوند و پادشاه برادرت میگرید — پیاده و سوار لشکروسپاه تومیگرید
پښتون همه به واویلای تست — همه قندهار میگرید

---

(۳) واړه : همه ، تمام ،کل .
(٤) مي : مخفف مي ئي.
(٥) تورتم : تاریکی بی‌نهایه و خیلی زیاد وشب دیجور.
(٦) کړم : به فتحتین ، بریده و مجروح ومقطوع .
(۷) په خوا : عروض و وقوع ، محاورهٔ مخصوص پښتو است .
(۸) پلی : به زورکی اول و دوم ، پیاده که مقابل آن سور ( سوار ) است .

اصفهان پاته تاج نسکور عالمه چه شاه محمود سو نن په گور عالمه

د پښتون لمر سو ، تياره تور عالمه راته دښمن به کا پيغور عالمه

چه پاچا ولاړ پښتون گدا سونا قندهار واړه په ژړا سونا



لښکر سوخپور پښتون ولاړ دئ اريان(۱) په خاورو ځای کا شاه محمود عاليشان

پاته سو تخت و تاج د ټول اصفهان زړه ئې راسوړ سو، کاخوښی دښمنان(۲)

وايي پښتون اوس بې پاچا سونا قندهار واړه په ژړا سونا



اسمانه بيا دې څه ستم کا څرگند وشلاوه تا چه د پښتون وو پيوند

دښمن دې بيا زموږ په وير کا خورسند چه شاه محمود دې کا په قبر کې بند

پر کوړ مو وير شور و غوغا سونا قندهار واړه په ژړا سونا



هوتکو!ژاړئ محمود شاه څه سونا ؟ پښتنو ! ستاسې لوی سپاه څه سونا ؟

له اصفهانه تر فراه څه سونا ؟ پاچا چه ؤ ، حشمت‌پناه څه سونا ؟

د پښتنو پرتم فناء سونا قندهار واړه په ژړا سونا[۱۰۳]



محموده!ځوان وې ولې ولاړې له ما! له تخت و تاجه ته پرڅه سوی جلا ؟

اصفهان ولې پاته سونا له‌تا سردې راپورته کړه،چه څه کړې‌اعدا!

دښمن ولاړ (۳) بيا شاوخوا سونا قندهار واړه په ژړا سونا



اورم ناري د غم چه کړينه فرياد پښتون په مرگ د شاه محمودسو برباد

زړونه چه تل به ؤ، ښادمن سوه ناښاد د ساندو ږغ دئ چه راوړينه ئې باد

---

(۱) اريان : سراسيمه ، پريشان .

اصفهان ماند،وتاج ما سرنگون گردید — چون شاه محمود بگور اندرون رفت
آفتاب پښتون تاریك و تار شد — اکنون دشمن طعن خواهد داد :
که پادشاه رفت و پښتون گدا گردید — همه قندهار میگرید



لشکر پراگنده‌شدو پښتون‌سراسیمه‌است، — شاه‌محمودعالیشان‌درخاك مسکن گزید
تاج و تخت همهٔ اصفهان ماند — دشمنان‌خوشی‌میکنند ودلشان خنك شد
میگویند که‌اکنون‌پښتون بی‌پادشاه شد — همه قندهار میگرید



ای‌فلك ! بازچه ستم آشکارا ساختی ؟ — آنچه پیوند پښتون بود ،گسیختی
باز دشمن را بماتم ما خورسند کردی — چون‌شاه‌محمود را درگورمحبوس‌ساختی
بر خانهٔ ما ماتم و شور و غوغا آمد — همه قندهار میگرید



ای هوتك‌ها! بگریید شاه‌محمودچه‌شد؟ — ای افغانها ! سپاه بزرگتان چه شد ؟
از اصفهان تا فراه چه شد ؟ — پادشاهیکه حشمت پنـاه بود چه شد؟
عظمت پښتونها فانی شد — همه قندهار میگرید



ای‌محمود!جوان بودی‌چرااز پیش‌من‌رفتی؟ — چرا از تخت و تاج، جدا افتادی ؟
چرا اصفهان از پیش تو ماند ؟ — سرت بردار ،که اعداء چه میکنند !
دشمن باز بهر طرف ایستاد — همه قندهار میگرید



صداهای غم و اندوه را می‌شنوم — پښتون‌بمرگ شاه محمود برباد گردید
دلهائی که‌همواره‌شاد بودندغمگین گشتند — صدای ناله و فریاد را یاد می آورد

---

(۳) دربدل : قیام و بعد از ذلت بس بحال خود آمدن :

ماتم زده پیر و برنا سونا قندهار واړه په ژړا سونا

☆☆☆

وروره ! مقر دې ستا مولا کې جنت دردې کې تا ته پسله مرگه راحت
روح دې وه(۱) ښاد په لویه ورځ د قیامت مخ دې وه روڼ دخدای په مهرو رحمت
د خالق رحم تل پرتا سونا قندهار واړه په ژړا سونا

## « ٤٨ » ذکر د شاعرهٔ برگزیده زرغونه

**زرغونه** د **ملادین محمد کاکړ** لور وه، په پنجوائي کې اوسېده، او له پلاره ئې وکا تحصیل د علومو ، اود فصاحت احکام ئې زده کړل او د فصحاؤ اشعار ئې ولوستل. زرغونه په حباله د **سعدالله خان نورزی** وه، چه توریالی زامن ئې درلود، اوټول دعلم اوهنرخاوندان وو. ماته هسې نقل وکا زما پلار: چه زرغونې د شیخ مصلح الدین سعدی رحمةالله علیه کتاب د بوستان ټول په پښتوشعر نظم کا ، او نوم [۱۰٤] ئې ؤ «**بوستان د پښتو**» چه دا کتاب ئې په سنه (۹۰۳) هجري قدسي پای ته ورساوه ، اوټول نکات عارفانه ، او نصائح حکیمانه ئې په پښتو کړل .

علاوه پردې زرغونې نوراشعار او غزلونه هم وویل، او په زمره د فصحا ئې شهرت وکا هسې چه موزونانو د روزگار به ئې اشعار لوستل . او د پښتو په بوستان بې(۲) سیر کا ، او گلونه د پند او نصیحت به ئې ټولول . هسې وایي : چه زرغونه کمالداره ښځه وه ، خط ئې خورا ښه وو، اوکاتبانو به ئې له حسن خطه ، اقسام د خط زده کول . زما پلارهسې وویل : چه په سنه(۱۱۰۲) هجري ما د زرغونې په خط « بوستان د پښتو» ولید، چه خپل اشعار ئې پخپل ښه خط هسې کښلی ؤ، چه ملغلري (۳) ئې خط ته عاجزي کا . او دغه حکایت له هغه کتابه زما د پلار رحمةالله علیه په یاد ؤ، چه زه ئې په خزانه کې کاږم :

(۱) دی وه : فعل خاص دعایی و رجائی است ، که در مواقع دعا و رجا گویند .

پیر و جوان ماتم زده گردید همه قندهار میگرید



ای برادر! خداوند مقرت را جنت بگرداند بعد از مرگ بتو راحت دهاد
بروز قیامت روحت شاد باد به مهرو رحمت خدا رویت روشنباد
رحم خالق همواره بر تو باد همه قندهار میگرید

## «۴۸» ذکر شاعرهٔ برگزیده زرغونه

**زرغونه** دختر **ملا دین محمد کاکړ** بود، ودرپنجوائی میزیست، وازپدرش تحصیل علوم را نمود، و احکام فصاحت آموخت، و اشعار فصحاء را خواند. زرغونه در حبالهٔ **سعدالله خان نورزی** بود، که پسران غیرتمندی داشت، وهمه ارباب علم وهنر بودند.

پدرم بمن چنین حکایت کرد: که زرغونه کتاب بوستان شیخ مصلح‌الدین سعدی را همه به شعر پښتو نظم کرد و نام آن «**بوستان پښتو**» بود، که این کتاب را در سنهٔ (۹۰۳) هجری باتمام رسانید، و تمام نکات عارفانه، ونصایح حکیمانه را به پښتو آورد.

علاوه بر آن زرغونه اشعاروغزلیات دیگری را هم گفت، و در زمرهٔ فصحاء شهرت کرد چنانچه موزونان روزگار اشعارش را میخواندند، و دربوستان پښتو سیرمیکردند، وگلهای پند و نصیحت را می چیدند. چنین گویند: که زرغون زن باکمالی بود، خطش نهایت خوب بود و کاتبان از حسن خطش اقسام خط را می‌آموختند. پدرم چنین گفت: که در سال (۱۱۰۲) هجری بخط زرغونه «بوستان پښتو» رادیدم واشعارخود رابه‌چنان خط خوبی نوشته بود، که گوهر به آن عاجز می‌ماند. این حکایت آز ان کتاب بیاد پدرم بود رحمة الله علیه، که من در خزانه مینویسم:

---

(۳) کذا: مرغلری هم نویسند، که هر دو املاء صحیح بنظر می‌آید چه تلفظ آن

## حکایت له بوستانه د پښتو

اورېدلې مې قصه ده
چه لهٔشاتو هم خوږه ده
د اختر په ورځ سهار
بایزید چه ؤ ، رویدار
لـه حمامـه راوتلی
په کوڅه کې تېرېدلی
ایرې خاورې چا لهٔبامه
راچـپه کـړلې نـا پامه
مخ او سر ئې سو ککړ
په ایرو په خاورو خړ[۱۰۵]
بایزید په شکر کښنو سو :
د خپل مخ په پاکېدو سو
« چـه زه وړ یـم د بـل اور
چه په اورکې سم نسکور »
« له ایرو به څه بد وړمه (۱)
یا به لړ شکوه کومه »
هو ! پوهانو ځان ایرې کړ
له لوینې (۲) ئې ځان پرې کړ
څوك چه ځان تهٔگوري تل
خدای ته نسې کړای کتل
لویې تل په گفتار نده
لو خبره په کار نده (۳)
تواضع به دې سر لوړ کا
تکبر به دې تل ځوړ کا

## « ٤۹ » ذکر د عفت همراه رابعه

حال د دې شاعره (٤) ماته ندئ معلوم سوی ، خو لږ څه چه ښکاره ده ، هغه هسې ده ، چه دا شاعره د قندهار وه ، او په دوران د **محمد بابر پادشاه** (٥) ئې ژوندکا. هسې وایې : چه اشعار ئې ډېر ؤ، دیوان ئې درلود ، دغه یوه رباعي ماته صدیق او رفیق **محمد طاهر جمریانی** (٦) وویله ، چه زه ئې دلته په خزانه را نقل کوم : [۱۰٦]

---

(۱) وړمه :مزید علیه (وړم) است بمعنی می‌برم، که برای وزن بیت (ه) درآخر آن آمده.
(۲) لوینه : تکبر ، و از مادهٔ لوی (کلان) ساخته شده .
(۳) لوخبره : یعنی سخن کلان ، که عبارت از تکبر و غرور است .

## حکایت از بوستان

شنیدم که وقت سحرگاه عید — زگرمابه آمد برون **بایزید**

یکی طشت خاکسترش بیخبر — فرو ریختند از سرائی بسر

همی گفت: ژولیده دستار موی — کف دست شکرانه مالان بروی

«که‌ای نفس! من درخور آتشم — ز خاکستری روی درهم کشم»

بزرگان نکردند در خودنگاه — خدا بینی‌ازخویشتن بین، **مخواه**

بزرگی بناموس و گفتار نیست — بلندی بدعوی و **پندار** نیست

تواضع سر رفعت افرازدت — تکبر بخاك اندر اندازدت

بگردن فتد سرکش تند خوی

بلندیت باید بلندی **مجوی**

«سعدی»

## «۴۹» ذکر عفت همراه رابعه

حال این شاعره بمن معلوم نشد . اما چیزیکه معلومست چنین است ، که ازقندهار بود ، وبه دوران **محمد بابر پادشاه** زندگانی میکرد ، چنین گویند : که اشعارش زیاد بوده و دیوانی داشت ، این یك رباعی را بمن صدیق و رفیق **محمد طاهر جمریانی** گفت ، که من آنرا درینجا درخزانه نقل میکنم :

---

(۴) کذا : صحیح آن باید ، درینجا «شاعري» باشد ، زیرا دال عامل و مغیر است .

(۵) دوران شاهی بابر در افغانستان از (۹۱۰) تا (۹۳۷) هجری است .

(۶) نام قومی است ، از توخی پښتون .

رباعی

آدم ئې مځکې وته راستون کا په اور د غم ئې سوی لړمون کا
دوزخ ئې روغ کا، پرمخ د مځکې نوم ئې د هغه ، دلته بېلتون کا

# خاتمه د کتاب

په بیان د حال دکاتب‌الحروف حقیر فقیر **محمدهوتك** مؤلف د دې کتاب هسې وايي **محمد** زوی د **داؤد خان** زوی د **قادرخان** په قوم هوتك ، چه زموږ دکهول اصل ځای مرغه (۱) وه چه زما نیکه قادرخان له هغه ځایه راغئ سیوری ته ، او هلته واوسېدئ ، پسله څومدته په تقاضاء د نصیب اوقسمت راغئ ، او د قندهار په‌خواکې په‌کلی دکوکران(۲) استوګنه‌کوله او پېشه ئې ؤ زراعت .

قادرخان ډېر معمر سړی ؤ ، په سن د (۷٦) کالو په سنه (۱۰٥۸) هجری وفات سو ، او په **هغه‌کلی** چه کوکران نومېږي ښخ سو . زما پلار چه داؤدخان نومېږي په‌کال (۱۰۲۹) سنه هجري ، په دغه‌کوکران زېږېدلئ ؤ ، او په آوان د صباوت ئې علوم **لوستلی** ؤ او پخپل عصرپه موزونانو او فصحاء او علماؤ د نامه خاوند ؤ ، او ډېر عمر له قندهاره تللئ ، او دکسی غرونه او ږوب [۱۰۷] او ډېري (۳) او پېښور ، اونور ځایونه ئې لیدلی ؤ، هغه وقت چه خان علیین مکان حاجي میرخان په قندهارکې دګرګین خان سره جنګونه‌کړل ، نو زما پلار هم په دغو جګړوکې ملګری ؤ ورسره .

---

(۱) مرغه : حاشیهٔ ۲ ص ۱۰ را بخوانید .

(۲) کوکران : حاشیهٔ ۲ ص ۹٦ را بخوانید .

رباعی

آدم را به زمین فرود آورد به آتش غم اندرونش را سوخت
بر روی زمین دوزخ آفرید و نام آنرا درینجا فراق نهاد

## خاتمهٔ کتاب

در بیان حال مؤلف این کتاب، کاتب الحروف حقیر فقیر **محمدهوتك** چنین گوید :
**محمد** پسر **داؤد خان** ولد **قادر خان** قوم هوتك ، که جای اصلی دود مان ما مرغه بود ، که جدم قادر خان از آنجا به سیوری آمد ، و در آنجا سکونت کرد ، بعد از مدتی به تقاضای نصیب و قسمت آمد ، و در اطراف قند هار به قریهٔ کو کران سکونت گزید ، وپیشهٔ وی‌زراعت بود .

قادرخان شخص نهایت معمری بود ، وبسن (۷٦) سالگی در سنه (۱۰۵۸) هجری وفات یافت و درهمان قریه که کو کران نامیده میشود دفن گردید . پدرم که داؤد خان نامدارد ،در سال (۱۰۲۹) هجری درهمین کو کران بدنیاآمده بود ، ودرآوان صباوت علوم را خوانده، ودرعصرخویش درجملهٔ موزونان و فصحاء وعلماء دارای نامی بود ، و مدت زیادی ازقندهار رفته و کوههای کسې و ژوب و ډېره جات ، وپشاور وجایهای دیگر را دیده بود ، وقتیکه خان علیین مکان حاجی میرخان در قندهار با گرگین خان میجنگید ، پدرم نیز درین جنگها باوی همراه‌بود.

---

که بدال هم خوانند ، و معنی آن مسکن و مأواء ، و مهمانخانه و جایگاه است ، ودرپښتو اگر دیری بصورت جمع ذکر گردد ، دو شهر مذکور مقصد آن میباشد .

ځکه نو له قديمه زما معرفت له دې خاندانه ډېر دئ ، او اخلاص ئې لرم په زړه .
پسله‌کال (۱۱۲۰) سنهٔ هجري چه ، د صفوي پادشاه لښکرې په‌قندهارراغللې،نود جنت مکان
حاجي‌ميرخان له خوا ، زما پلار ولاړ ، او په فراه او سيستان او **گلستان**(۱)او نوروځايوئې
پښتانه‌د حاجي‌ميرخان مددته راوغوښتل،اوله‌هغوپښتنوسره‌ئې‌مرکې‌وکړې اوډېرپښتانه‌دنورزو
او بارکزو او اسحق زو،ئې‌ملگرى کړل‌د ځان اوپر**خسروخان**(۲)ئې يرغل‌وکا.په‌دغوجنگو
زما پلار د حاجي‌ميرخان جنت مکان له خوا سپه سالار ؤ، پسله وفاته د حاجی ميرخان مرحوم
مغفور، زما پلار په سنه (۱۱۳٦) هجري وفات سو، اوپه‌کو کران‌د خپل پلارسره ښخ‌سو،دغه
مرحوم رحمةالله عليه طبع مستقيم درلوده،اوکله به ئې‌شعرونه هم ويل، چه‌دلته تيمناً د ده دوې
رباعی راوړم ، او دا رباعی په صنعت د تجنيس بې‌نظيردئ ،اوپه فصاحت‌هم‌مثل نلري.«۵۰»

رباعی

چه د چا په‌زړه‌کې اور د مينې بل سي(۳) په اوربل ئې لمبې گډې حال ئې بل سي
اور د مينې‌کله مري د زړه له مينې د اوربل مينه‌که تل‌د زړه‌په تل‌سي[۱۰۸]

رباعی وله ايضاً رحمةالله تعالى

که ئې‌وينې‌وينى تل‌څاځي له‌زړ وڅخه(٤) څوك چه‌ويني تا ،له ځوانو يازړوڅخه
د زړو له زړه‌که وينې وينى څاځي په‌کړو د غم لوېدلی ستا له کړو څخه

(۱) گلستان : در شمال شرق فراه جائی است ،که قوم نورزی دران ساکنند .
(۲) خسروخان‌بقول مورخين برادرزادهٔ گرگين‌خان مقتول بود ،که بقول تاريخ‌سلطانی (ص۷۲) وجهانکشای نادری(ص٦) وخورشيد جهان (ص۱۳۲) کيخسروخان نامداشت ، ولی سرجان ملکم (ص۲۰٤)وعبدالله رازی درتاريخ ايران (ص٥٦٤) خسروخان نوشته‌اند .

بنابرین معرفت من از قدیم با این دودمان زیاد است ، و بـه آنها اخلاصی در دل دارم . بعد از سال (۱۱۲۰) هجری ، که لشکر پادشاه صفوی بر قندهار آمد ، از طرف حاجی میرخان جنت مکان ، پدرم رفت ، درفراه و سیستان و **گلستان** و جایهای دیگر پښتونها را بمدد حاجی میرخان دعوت کرد ، و با همان افغانها صحبت ها نمود . و بسی از پښتونهای نورزی و بارکزی و اسحق زی را با خود همراه ساخت ، و بر **خسروخان** یورش آورد ، و درین جنگها پدرم از طرف حاجی میرخان جنت مکان سپه سالار بود ، بعد از وفات مرحوم مغفور حاجی میرخان ، پدرم درسنه (۱۱۳۶) هجری وفات یافت ، ودر کو کران با پدرخود مدفون گردید این مرحوم رحمة‌الله علیه طبع مستقیمی داشت . و گاهی شعر هم میگفت ، کـه درینجا تیمناً دو رباعی وی را می‌آورم ، واین رباعی ها در صنعت تجنیس بی‌نظیراست ، و در فصاحت هم مثلی ندارد . «۵۰»

## رباعی

| | |
|---|---|
| اگردردل کسی آتش‌عشق افروخته گردد | درمسکنش آتش افتاده وحالش دگر گون‌میشود |
| آتش‌محبت کی‌ازخانهٔ دل‌خاموش‌میگردد: | اگر عشق اوربل در اعماق دل جـای بگیرد |

## رباعی هم ازوست رحمة‌الله تعالی

| | |
|---|---|
| اگرمی‌بینی‌همواره ازدلها خون‌میریزد | چون جوان یا پیر ، ترا ببیند |
| اگرمی‌بینی ازدل پیران خون میچکد | ازکردارتو درحلقه های غم افتاده‌اند |

---

(۳) درین رباعی بین کلمات «بل» به فتحه بمعنی فروزان و «بل» به زور کی بمعنی دیگر و نیزدرکلمات ذیل تجنیس است :

«تل» به زور کی همیشه ، « تل» به فتحه‌عمق. «مینه» محبت ، و «مېنه» بیای مجهول خانه ووطن . اوربل اول بمعنی مسکن و ماوا ، و اوربل دوم بمعنی کاکل مخصوص زنانه .

(٤) درین رباعی هم بین کلمات ذیـل تجنیس تام است ، وینې (می‌بینی) وینی (خون) وینې (می‌بیند) زړو بسکـون اول (دلها) زړو بفتحهٔ اول (پیران) . کړو به فتحه (حلقه ها) کړو به سکون اول (کردار و عمل) .

«۵۱» اوس چه مې لږ حال د پلار او نيکه وکښێ،نوخپل حال هم کاږم ، او د خزانې ليدونکي په خبروم : زما راتګ دې نابودى دنيا ته يعنى تولد مې واقع سوى ؤ ، په (۱۳) د رجب المرجب سنه (۱۰۸٤) هجرى په کوکران کې ، او سن ته د تميز ورسېدم ، نو مې پلار دوس راته شروع کا . او تر اتسلم کاله د عمر مې ولوستل احکام د دين او فقه او اصول او تفسير او د فصاحت علوم لکه : قافيه او عروض ، او بيان ، او معانى او نور ، چه زما پلار مرحوم وفات سو، اوزه په تقاضاد پادشاه ظل الله دامت سلطنه شاه حسين راغلم (۱) د قندهار ښار ته تر اوسه په نظر کيميا اثر د پادشاه اسلام ښاد يم ، او هر کله په احسان او مرحمت د دې خاندان عاليشان سر بلند يم،عمرمې تېر ېږي په لوستلو او کښلو د کتابو،له نعمتود جهان بله بهره نلرم،اوزړه مې هم خوښى نکا بېله دې اشغالو، په بل څه . په دې اوقاتو د عمر چه مې تېر کړل يو څه کتابونه مې وکښل. چه يو له دغو څخه دغه خزانه ده : او نور دا دي : يو کتاب مې [۱۰۹] کښلی دئ په بيان د علوم د فصاحت چه «**خلاصة الفصاحة**» باله سي ، او په دغه کتاب مې ټول علوم د فصاحت په پښتو دخپلو پښتنو طالبانو دپاره خلاصه کړل، بل کتاب مې کښلی دئ په بيان د طبابت او علاج چه «**خلاصة الطب**» ئې نوم دئ. په سنه (۱۱۳۹) هجري چه مې دغه کتاب د پادشاه عالم پناه مدظله مخ ته پېښ کا، سل طلاوي ئې ماته صله کا، اوهر کله داسې مراحم د پادشاه د دې فقيرغريب په حق ډېر دي اوارکان د دولت ابد مدت هم پردې فقير د مرحمت نظر کا ، خاص بيا بهادرخان عاليمکان (۲) چه نن ورځ په قندهار د غرباو پر سر ظل د رحمت دئ .خالق دې (۳) عمر ډېر کا .

ماله يوديوان د اشعارو هم سته،چه په دې وقت کې مردف اومدون سوى دئ،اوغزلونه او قصايد او رباعى لري،کله چه طبع قاصر ميل د شعر او وينا کا،شعرونه کاږم ، اوموزونان د روزګار ئې خوښوي ، ځکه چه دلځان ستاينه ښه نده ، او پوهان

«۵۱» اکنون که کمی ازحال پدروجد را نگاشتم،احوال خود را هم مینویسم ، وخوانندگان خزانه را واقف میسازم : آمدن من باین دنیـای فانی ، یعنی تولد من واقع شده بود ، به (۱۳) رجب‌المرجب سنه (۱۰۸٤) هجري در کوکران ، چون بسن تمیز رسیدم · پدرم درس دادن را آغاز نهاد ، و تا سال هجدهم عمراحکام دین ، وفقه واصول و تفسیر وعلوم فصاحت مانند قافیه ، عروض ، بیان ، معانی وغیره را خواندم · چون پدرمرحومم وفات یافت ،ومن به تقاضای پادشاه ظل‌الله دامت سلطنه به شهر قندهارآمدم تاکنون زیـرنظر کیمیا اثر پادشاه اسلام شادم ، وبهرگونه احسان ومرحمت این خاندان عالیشان سربلندم · عمرمن به خواندن ونوشتن کتب میگذرد ، ازنعم دنیا بهرهٔ دیگری‌ندارم‌وبدون این اشغال دلم هم خوش‌نمیشود درین اوقات عمر که گذراندم چندکتابرا نوشتم که یکی ازآنها همین خزانه است ، وکتب دیگرم اینست : یك کتابرا در بیان علوم فصاحت نوشته‌ام کـه « **خلاصة الفصاحة** » نامدارد و درین‌کتاب تمام علوم فصاحت را بزبان پښتو برای طلبهٔ پښتون خلاصه کـردم · کتاب دیگری را نوشته‌ام : دربیان طبابت وعلاج که « **خلاصة الطب** » نامدارد · در سال (۱۱٤۹) هجری چون این‌کتابرا بحضورپادشاه عالم پناه مدظله تقدیم داشتم ، صد طلابمن صله فرمود ، وهمواره مراحم پادشاه در حـق این فقیر غریب بسیار است · و ارکـان دولت ابد مدت نیزبرین فقیر نظر مرحمت دارند خصوصاً بهادر خان عالیمکان ، که اکنون درقندهار بر سر غربا سایه‌اش ظل رحمت است · خالق تعالی عمرش درازگرداناد ·

من دیوان اشعار هم دارم ، که درین وقت مردف و مدون شده است ، وغزلها و قصاید و رباعی دارد · وقتیکه طبع قاصر میل شعر وسخن کند اشعاری را می‌نویسم ، که موزونان روزگارآنرامی‌پسندند ، چون ستایش خود خوب نیست ، و دانشمندان

---

(۲) صفحهٔ (۱۲٦) خوانده شود ·

(۳) دي : مخفف «دي ئي» دعائیه است ·

له دېکاره عارکا ، نو په خزانه کې مې خپل احوال وکښې ، چه د دېکتاب ویونکی ماته دعا وکــا ، او هر وقت مې په دعا یادکا . خپله یــوه غزل هم دلته د نمونې پهطورکاږم ، چه پر صفحه د روزګار یادګار وي ، نور اشعار مې په دیوان کې یوځای دي شایقان د علم او شعر ئې له دیوانه لولي [ ۱۱۰ ] .

## غزل د کاتب الحروف غفرالله ذنوبه

ساقي پاڅه د سروملوډك یوجام را (۱) ستا لغمه نا آرامه یــم ، آرام را
ښله میو د بهار نندارې څه کړم ؟ پسرلی سو د خوښی ښه پیغام را
دنیاپاته ده ښادی مو یو ګړی دی(۲) یو ګړیمې خوښ که می ګړی انعام را
د ښلتون په تاریکو کې مې زړه شین سو رڼــا لمر د جــام د میو ، په ظلام را
نــاکامیو د دنیــا مې کــام راتریخ کــا چه مې خوږکاکــام ، ترخه وما ناکام را
نه نشاط سته ، نه مستی سته ، نه رندی سته چه سم رند هغه او به علی الدوام را

په او بو مې سوه زړ ګی لږ څه راتودکه
« محمد » ته د اور ډك یو هسې جام را



تمت الکتاب بعون الملك الوهاب ، اللهم اغفروارحم لکاتبه و قاریه ، و من له حق علینا والصلوة والسلام علی رسوله محمد ، و علی آله و اصحابه اجمعین .

کتاب تمام سو ، په ورځ د جمعې (۲٤) د شوال المکرم سنه (۱۱٤۲) هجری په قندهار کې او مؤلف محمد هوتك هم فارغ البال سو الحمدالله حمداً کثیراً (۳) .

بتاریخ دهم ماه ربیع الاول سنه یکهزارودوصدوشصت وپنج هجری گذشته بود [۱۱۱] از هجرت رسول خدا صلی الله علیه و سلم بدستخط حقیرفقیر کثیرالتقصیر **نورمحمدخروتی** برای عالیجاه رفعت جایگاه سردار عالی تبار **سردارمهردلخان** قلمی گردید .

(۱) را : مخفف «راکه» است بمعنی بده ، در محاوره و ادب هر دو بسیارمی آید .

(۲) درین بیت تجنیس تامست ، ګړی اول ودوم بمعنی لحظه وحصهٔ کمی ازوقت ، و ګړی سوم بمعنی کوزه و سبو است .

ازین کارعار دارند ، پس در خزانه احوال خود را (برای آن) نگاشتم ، که خوانندگان این کتاب بمن دعا کنند ، وهمواره بدعا یاد فرمایند. یك غزل خود را هم درینجا بطور نمونه مینویسم ، تا برصفحهٔ روزگار یادگار باشد ، اشعار دیگر من درديوان فراهم است شایقین علم وشعر آنرا از دیوان میخوانند .

## غزل نویسندهٔ حروف ، غفرالله ذنوبه

ساقیا برخیز وجام مملوازشراب سرخ بده — از غم تو آرامی ندارم ، آرامم بده
تماشای بهار را بدون می ، چه کنم ؟ — بهار آمد ، پیغام خوشی بیار
دنیا فانی ، و شادمانی ما هم دمی است — دمی مرا خوش گردان،وسبوی‌می‌انعام کن
در تاریکی های جدائی دلم کبود گشت — آفتاب روشن‌جام می را، درین ظلام بده
نا کامی دنیا حلقم را تلخ ساخت — بمن ناکام همان تلخی رابده که کام‌مراشیرین گرداند
نه نشاطی است‌ونه مستی‌ای و نه رندی ای — همان آبرا پیاپی بده ، تا رند گردم

دل سرد مرا به آب قدری گرم ساز
جامیکه پراز آتش باشدبه «محمد» بده



بمدد خدای بخشاینده کتاب تمام گشت ، خدایا ! بر کاتب و خواننده ، و تمام کسانیکه برما حق‌دارند ببخشای ورحمی بفرما،ودرود وسلام بررسول خدا محمد و برآل واصحابش باد.

کتاب تمام شد ، روز جمعه (۲٤) شوال المکرم سنه (۱۱٤۲) هجری درقندهار ، و مؤلف محمد هوتك نیز فارغ‌البال گشت . ستایش باد خدا را .

بتاریخ دهم ماه‌ربیع‌الاول‌سنه یکهزارو دوصد وشصت وپنج هجری گذشته بود از هجرت رسول خدا صلی‌الله علیه و سلم بدستخط حقیر فقیر کثیرالتقصیر **نور محمد خروتی** برای عالیجاه‌رفعت جایگاه سردار عالی تبار**سردارمهردلخان** قلمی گردید .

---

(۳) اینجا نوشتهٔ مؤلف کتاب ختم میشود و کتابرا به آخر میرسانید .

هر که خواند دعا طمع دارم    زانکه من بندهٔ گنه گارم(۱)

این کتاب را احقرالناس **محمد عباس** قوم **کاسی** (۲) درشهر **کویتهٔ بلوچستان** خاص ازبرای عالیجاه تجارت نشان **حاجی محمد اکبر** قوم **هوتکی** قلمی کرد سنه (۱۳۰۳)هجری باستعجال تمام قلمی شد (۳) ·

(۱) ازکلمهٔ (بتاریخ)تا(گنه گارم) نوشتهٔ کاتب نسخهٔ، مرحوم سردارمهردل‌خان بنظر می‌آید ،که نسخهٔ موجودهٔ ما ازان نقل و نگاشته شده ·

(۲)کاسی : قومی است ازپښتون که در دامنه‌های (دکسې غر) سکونت داشت ، واکنون حصهٔ ازانها درکویتهٔ موجوده ساکنند ( ر: ٦) ·

(۳) ازکلمه (این )تا (قلمی شد) ، نوشته محمدعباس است ،که نخسهٔموجوده را از روی نسخهٔ ، مرحوم سردارمهردل‌خان نوشته‌است · مرحوم حاجی‌محمد اکبر هوتکی که این نسخه برای وی نگاشته شده ، ازمشاهیرتجاربا نام ونشان قندهاربود ،که دراواخرعصراعلیحضرت امیر شیرعلی‌خان در قندهار حیات داشت و با هند تجارت میکرد · مشار علیه شخص عالم و ادب دوست و با ذوقی بود ،که باکتب پښتو و ادب آن عشقی داشت وکتابخانهٔ خوبی را ازکتب قلمی و مطبوع پښتو فراهم آورده بود ،که بسی ازکتب مهم این کتابخانه تاکنون در قندهار دیده می‌شود ·

حاجی محمد اکبر مرحوم دراوایل جلوس امیر عبدالرحمن‌خان نفیاً بکویته سکونت داشت و بعد از چندی بقندهارآمد ، وهمدرانجا از جهان رفت · مرحوم موصوف بزبان پښتو شعر هم می‌سرود ، وازآثار ادبیهٔشان عریضهٔ منظوم پښتواست ،که بحضوراعلیحضرت

# توضیح

اکنون که مرا از تصحیح و تحشیه وترجمهٔ متن کتاب پټه خزانه فراغی دست داد ، میروم تا راجع به برخی ازموضوعهای کتاب توضیحاتی تعلیق کنم .

چون حواشی اصل کتاب حوصله و گنجایش این تعلیقات و استدراکات را نداشت ، بنابران در آنجا فقط اشارت به اعداد و نمرهٔ تعلیقات کردهشد ، ودرینجا همان موضوعهای شرح طلب را توضیح میدهم .

این توضیحات که از کتب دیگر استدراکاً تحریر میگردد ، با حوالهٔ کتاب ومأخذ خواهد بود ، تا مطالب من درآوردی شمرده نشود .

(عبدالحی حبیبی)

# تعلیق و استدراك

## ۱

( صفحهٔ ۵ ، ر : ۱ )

### یکی از ولایات تاریخی وطن ما ، پکتیکا یا پښتونخوا

این کلمه در کتب باستانی و اشعارقدیم پښتو بسیار می‌آید ، املای قدیم آن **پښتنخا**، و بعدازان **پښتنخوا** واکنون **پښتونخوا** است · ښاغلی **کهزاد** در کتاب **آریانا**ی خود، راجع باین کلمه شرحی نگاشته که درینجا تلخیص میگردد :

« **پکت** یا**پښت** یا **بخت** بیك ریشه بـرمیگردد ، واز کهن ترین قبایل **ویدی** کتلهٔ **آریائی باختر** است، که حین مهاجرت دوحصه شده ، حصه‌ای در **بخدی** ماند ، وشاخه‌ای با قبایل دیگر که در جنگ **ده ملك** ذکر شده اند ، بجنوب **هندوکش** فرود آمده ، ودر دامنه‌های **سپین‌غر** جای گرفتند، **هیرودوت** ازقوم **پکتی** یا**پکتیس** یا**پکتویس** وازخانهٔ‌مسکونهٔ آنها **پکتیکا** یا **پکتیا** که درریشهٔ این نامها کلمهٔ **بخد** یا**بخدی** محفوظ مانده ذکرکرده ، و رسم‌الخط یونانی این‌نامهاواضح نشان میدهد که مورخ مذکورازقومی بنام **پښت** ، وازقطعه خاك مسکونهٔ‌آنها به اسم «**پښتیخا**» یاد می‌نماید (۱) » ·

طوریکه تاکنون بما معلوم است : قدیم‌ترین اثریکه **پکهت** دران ذکرشده ، همانا کتاب بسیارقدیم **ویدا**ست ،که درانجا مکرراً اسمی ازپکهت برده میشود (۲) · **ریگویدا** که مهمترین حصهٔ تاریخی ویداست ، از یك جنگ بسیار مهم تاریخی که در بین ده پادشاه برکنار**دریای‌راوی** پنجاب بوقوع پیوسته ، وده قبیلهٔ آریائی بریاست پادشاهان خود دران

---

(۱) آریانا ص ۹۴ طبع کابل ·

(۲) مثلاً ص ۱۸ ج ۲ ، ص ۲۶۰ ج ۳ ، ص ۴۶۵ ج ۲ ، کتاب ریگویدا ترجمهٔ گریفتن

